# دیباچه

عبدالرحمن بابا د مهمند د خوشحال خان خټک په شان سردار او چرته د یوې علاقې خان
نه وه. بلکې یو غریب مُلا وه مګر زړه ئې پادشاه و او ځکه د مینې نه ډک وو نو ئې د زر ټکیر
پرواه لرله او نه ئې د شاه جهان بادشاهي خاني پکار وه. د هغه هم دا سودا وه چې

زه د یار په دردو غم کښې غرق په خوښي یم
په دې اور کښې بې طاقته بې تاب خوښ یم

او هر کله چه دې په یو غریب خاندان کښې پیدا شوې وو د دې وجې نه د ده ابتدائي ژوند ډیر کم
معلومیږي. هم دغه یو دیوان دې چه ده په خوار و زار و یو ځنې کړیدې څه نور څه
جنګي کارنامې یا بل څه غټ معلومات د ده نه وو چه تواریخو کښې ذکر شوې دې، صرف یو د
مینې ډکه شاعري ورسره وه چه ډیر دوستو ئې قدر او خوښوو او هغه او پیژندې شوې. د هغه
زړه په وینو د هزار خوانئ ته مخ په او چو دریو کښې اغزي زرغون شوي دي د هغه د مرګ
نه ورو ستو د پېښور نه چه کوهاټ ته ځي په شلور نیم میله بانډې د مهمند و په علاقه کښې
بوګښي دې چه نو مړې بهادرکي دې د مینې او محبت په کتار و زخمي عبدالرحمن بابا په دې
کلي کښې پیدا شوې وو په کوم تابین کښې چه دې و د ګیر یزي هغې ته ابراهیم خیل وئیلې شي
او بعضې وائي چه غوریا خیل دې دا یقیني ده چه دې یو قابل مُلا وو پرونه او مرمنانه وو
بلکه ژوندې او بینې مُلا وو د هر کال عالم د سپرلي نه پیژندې شي. دې ځانځون وو چه ګلونو
په ځانګه به ئې اغزي خوښول او د خندا په ځائې به ئې ژړا خوښوله. د دنیا سره ئې ډیر کم
تعلق وو د ده یو خیال وو چه د زړه غم خوراک وو او هم دا سامعان ورسره وو چه آخر دې
په چشتیه خاندانې بانډې مجبور کړو. دا نه ده معلومه چه ده لاس نیوه د چا نه کړې ده
مګر دا یقیني خبره ده چه دې په چشتیه طریقه کښې د حضرت خواجه معین الدین
چشتي اجمیري رحمة الله علیه کښې داخل شوې دې. اول ده د ندبه ده سرود او ریدلو او
آخر پرې دومره استغراق غالب شه چه مونږ ترې پاتې شو او د پښتنو په اصطلاح کښې
د مُلا عبدالرحمن نه یو مستک جوړ شو. وائي چه شپه درځ به ئې ده او ژړا به یې وه ترهغې
حده پورې چه او ښکو ئې په مخ بانډې لارې جوړې کړې خداوند کریم ورله یو خوږ یا راند هم

ورکړي دي چه دهٔ به څه وئیل نو څنګه به لیکل او دا د څه یار نو برکت دے چه د عبد الرحمٰن د زړهٔ قطرے په هره حجره کښ په وینو سرے پړتے دی دا خوا بزهٔ اشعار هم د هغه زمانے دی ۔

تا له غم درم پهٔ څنګ پانده دے ولے څې      ولے نه پوهیږے له مانه چه ولے څې

چونکه د پښتون فطرت آزاد دے له دے وجے نه هر قسم آزادی په هر صورت چه وی دده وی ورسره ډیره بنه لګی او مسنګ یو داسے لفظ دے چه په چا پورے شی د پښتون په زړهٔ د هغهٔ ځائے پیدا شی ۔ نو عبد الرحمٰن اګرچه مُلا وُو مګر زړهٔ ئے د تنند رانو ووه دے وجے نه د هر پښتون په زړهٔ کښ خوښ شو او ډیر عزت ئے پیدا شو مُلایان چه یوه زدره وره طائفه ده هغو عبد الرحمٰن ته داخبره وړاندی کړه چه دا سرود او رباب او مخالف کا روئه پریږده او په شریعت باندے چلیږه په هغه زمانه کښ د عالمانو طاقت ډیر زیات وُو څوک ئے مخے ته ودرتلے نه شو چا ته به چه دوی څه شوه نو د دوی تابعدار به شو خو خیرا وکه د دوی نه به ئے ردکړ دا ئی کوله نو هغه کس به نیست نابود شهٔ ۔ تکه د کابل حکومت ته او ګورئ چه په طبیعت د عالمانو چلیږی ۔ مطلب دا چه د دوی د همسا او د تسبو مقابله بادشاهان هم نشی کولے ۔ نو ملا عبد الرحمٰن به څه مقابله کړے وه آخر ملایانو پرے د کفر فتوٰه ورکړه او د هزار خوانئ مزکه پرے تنګه کړه ۔ دوه درے تنه سری هم په دے جمع کښ وُو او په حقیقت کښ ملایان وُو نو هغوئ لاړل او ملا عبد الرحمٰن ئے په توبه ویستو مجبور کړو او دهٔ بیا په مانځه کولو شروع اوکړه او د ملایانو په اوچ زور د حل نه ناله تر راغے ۔ زما په خیال د ملایانو دهٔ په کفر اسلام کښ څه غرض نه وو بلکه د هغه عزت شوکت ته ئے څه بهانه جوړه کړه مګر دهٔ قدر خپلو ملګرو او بعضے حق شناسو ملایانو کولو ۔ د ملایانو مطلب پوره نه شو او دهٔ قدر عزت د پښتو نه لا زیات شو ملنګ وو او وے صاحب سلامت شهٔ بیا هم دے قابل نه وو چه خپل اشعار ئے جمع کړے وے ۔ بعضے خلق وائی چه پس د مرګه ئے کتاب کړل ۔ مګر دا غلطه ده چه دهٔ په ژوند کښ کتابی شکل مونده وو کتاب په تول سرین کښ چا وُنه کړو      بے رحمانه چه ئے وکړو دا کتاب

سیَن بیا هم دهٔ ډیرا شعار ضایع شوی دی او س هم د هغه په دیوان کښ ډیر کمے دے ډیرے غزلے چه په موجوده دیوان کښ نشته مګر د پښتنو په مجلسونو کښ

شته که چرې ماله خدائې تعالىٰ موقع راکړه نو زه به دا کوشش کوم چه د دهٔ ټول کلام به راجمع کوم مګر زما د پاره لږه ګرانه ده چه قوم بې قدره دے ۔ ؎

زړهٔ مې سوړے دېنے ترے څه شي
دَ بې قدرئ کچکول ترے لاندې ګرزومه

دے په اصل کښې دَ بهادر کلي وُو، مګر په هزارخوانئ کښې اوسيدهٔ. وائي چه اوس هم هغه وُنه شته چه دے به ترے د لاندې کښېنستو او خپل اشعار به ئے وئيل مرحوم په بهادر کلي کښې وهٔ، مګر جنازه ئے هزارخوانئ ته راوړے شوه او دَ اخون درويزه صاحب په مقبره کښې هزارخوانئ ته نژدې ښخ شوهٔ قبر سره ئے يو دړوکے جُمات هم شته دَ قبر نه ئې چارچاپېره چار ديواري ده او کوم اغزي چه دَ هغهٔ په زړهٔ کښې وُو هغه اوس دَ قبر نه راختلي دي. او دَ هغه وران کنډر راز خلقو ته ښائي. پښتون يو ژوندے او مست قوم دے دهٔ په خټه کښې شاعري آخلے شويده. هر پښتون شاعر دے او هره پښتنه تنجه شاعره ده. دا مېچنے ته ناسته وي او مسرئي به جوړه وي. او د ديوان خاوندان هم ډير دي مګر کوم مقبوليت چه دهٔ پيدا کړے دے نظير ئې نشته. د دے لوئې وجه دا ده چه د دهٔ کلام ساده او رنګ ئې د تصوف دے د دے وجه نه ئې بزرګان هم خوښه وي تر دے حده پورے چه حضرت اخوند صاحب به وئيل چه که دَ قرآن مجيد نه سوا په بل څه مونږ رډ اوږے نو مونږ به دَ عبدالرحمٰن په اشعارو کړلو. د دے نه نور څه زيات عزت کيدے شي. او چه دا بزرګان يو څيز خوښ کړي نو بيا دَ هغه چه څومره عزت اوشي نو کم دے. د دے نه علاوه د دهٔ شاعري هم دَ څهٔ معمولي جذباتو اظهار نهٔ دے او نه محض دَ ځوانئ دَ بهار ګلونه دي. بلکه د دهٔ ديوان دَ خوږو زړونو تهوتے دي. يا دَ خوني جګر قطرے دي. چه پيدا که غند راجمع شوي دي د هر خيال دَ هر سړي د پاره پکښې مشغولتيا شته دَ هر ناسور د پاره پکښې دَ الماسو نو يوز پيدا کيږي. د دهٔ غزلونه پښتانهٔ رباعي وائي او زهٔ دا نهٔ شم وئيلے چه دَ پښتون په ملک به داسے سړے يا ښځه پيدا اشي چه هغه به عبدالرحمٰن نهٔ پيژني دَ هر غزل خوان د پاره دا ضروري ده ۔

والسّلام

ديباچه ختم شوه

بسم الله الرحمن الرحيم

کوره هسے کردګار دے رب زما | چه صاحب د کل اختيار دے رب زما
همګي بزرګواران چه څوک يې وايي | تر همه و بزرګوار دے رب زما
نه يې هيڅ حاجت په چا باندِ موقوف دے | نه د هيچا منت بار دے رب زما
له نيستئ يې د هستئ صورت پيدا کړه | هسے زنګ پروردګار دے رب زما
هم صانع دے د جمله و مصنوعاتو | هم سامع د هر ګفتار دے رب زما
چه يې هيچرے نه مِثل نه مثال شته | د هغو غفور و غفار دے رب زما
هر تعمير چه د دنيا او د عقبیٰ دے | د همه وارو معمار دے رب زما
خوانده د نا نويسو صحيفو دے | دانند د هر اسرار دے رب زما
که ظاهر دے که باطن دے که مابين دے | له همه و خبردار دے رب زما
که پيدا که پوشيده دے که اوسعاد دے | په همه و وقوف دار دے رب زما
شريک نه لري په هيڅ باد شاهۍ کښ | بي شريکه شهريار دے رب زما
هسے نه چه واحد يې دے له عجزه | په واحد وجود بسيار دے رب زما
حاجت نه لري د هيچا دي رئ ته | له هغو سره چه يار دے رب زما
څه حاجت دے چه و بل خوا ته يې غواړم | په خپل کور کښ همکنار دے رب زما

هيڅ تغير و تبديل نه لري رحمانه
تل تر تله برقرار دے رب زما

که صورت د محمد نه وی پيدا | پيدا کړے به خدائ نه وه دا دُنيا
کل جهان د محمد په روئ پيدا شو | محمد دے د تمام جهان آب
نبوت په محمد باندِ تمام شو | نشته پس له محمده انبيا
نور هاله د محمد وه په جهان کښ | چه بوئ نه وه د آدم او د حوا
په صورت که آخرين دے پيدا شوے | په معنیٰ کښ اولين دے د هر چا
خدائے مه ګڼه بيشکه چه بنده دے | نور يې کل واره صفات دي پرښتيا
که نبي دے که ولي دے که عاصي دے | محمد دے د همه وارو پيشوا
چه يې دين د محمد دے قبول کړے | جنتي دے که ناستر دے که پارسا

محمد د کبریا نور هسې دے — محمد دے د ړندو د لاس عصا
که رڼا ده پیروي د محمد ده — ګنې نشته په جهان بله رڼا
محمد د بې چاره وو چاره ګر دي — محمد دے هر دردمند لره دوا

زهٔ رحمن د محمد د درخاکروب یم
که زهٔ یم خدای نهٔ کاله دي دره جُدا

هوښیار مه ګڼه هوښیار دے د دنیا — بې وقوف دي وقوف دار دے د دنیا
روښنائي په هغه ړندو ده حرامه — چه پرې کیني ګرد د غبار دے دنیا
پوچ ګوئي ده چه یې اهل د دنیا کا — هر کلام و هر ګفتار دے دنیا
د طفلانو په څیر واړه خاکبازي کړي — هر چه کاندي کاروبار دے دنیا
واړه ډکې خولې د پیو هلکان دي — کاردیده و پخته کار دے دنیا
همیشه به بیوقوف او بې شعور دي — چه مخمور وي په خمار دے دنیا
د شرابو هم لا همره مستي نهٔ وي — لکه مست وي خمرخوار دے دنیا
هر بیمار لره دارو په جهان شته دے — دارو نهٔ لري بیمار دے دنیا
د هر سوي علاج وشي په جهان ګښې — مګر سوي په شرار دے دنیا
هر چه واچوي دارو ته واړه سوزي — مور به نهٔ شي طلبګار دے دنیا
ګرفتار یې همیشه په غم ګښې ډوب وي — هیڅوک مه ګرفتار دے دنیا
تل به پروت وي د ظلمت په تور تم ګښې — چه اسیر وي په کفار دے دنیا
په مسلو ګښې خاصه مسلم هغه دے — چه یې هو شلاوه زنار دے دنیا
تن یې پاتې شي بې سر د سر یې لاړ شي — سردار ګله دے سردار دے دنیا
خوې لوڼه یتیمان کا ځنې دردمې — بیوفا دي مور او پلار دے دنیا
همیشه به یې یو پنډ د غم په سر وي — چه په سر یې وي دستار دے دنیا
واړه غم دے که یې پیرې که یې پلورې — نور څه نشته په بازار دے دنیا
همګي واړه تاوان دي تګي کاندي — فروشنده و خریدار دے دنیا

په دنیا به مینه نهٔ کاندي هیچرې
چه خبر وي په اضرار دے دنیا

چه نظر د چا په دین او په ایمان وي    هغه نه کا انتظار دده د دنیا
لویي هسک یې همه واړه مکاران دي    خدریساده په مکار دده دنیا
آشنایان یې همه واړه اغیاران دي    یار هغه دے په دیار دده دنیا
چه پیدا شي همګی واړه فنا شي    راشه او ګوره ناتار دده دنیا
چه ویریږي له کوهي او له کړنګه    هغه نه دروي په لار دده دنیا
هر سړي لره چه ورشي خنې دروي    مالیدلے دے رفتار دده دنیا
په یوه ګړئ بهار وي بیا خزان شي    بقا نه لري بهار دده دنیا
که هزار هزار اړشتئ ته ورته کیږدے    بي بنیاده دے دیوار دده دنیا
که د اوسپنو حصار ترځان چاپیر کړے    ښیښه د ګنړه حصار دده دنیا
بلکه سورے د آفتاب په څخګېن ګرزي    نشته هیچرے قرار دده دنیا
هیڅ ګمان د بهترئ ورباندې مه کړه    کهتري ده وار په وار دده دنیا
د مقراض غوندي د سړي عمر    هم دالیل هم دا نهار دده دنیا
پس له مرګه به حساب د سړي غوښت شي    په انداز او په مقدار دده دنیا
عاقبت چوبه یو بوټي شي د خاورو    ګلعذار او ګل رخسار دده دنیا
برابر به له ګدایي سره پاچې    شهزاده و شهریار دده دنیا
پاي به داغ وي د لئیم په تتهو باندے    هر درم و هر دینار دده دنیا
د تي نه تر قناعت صدقه شه    هم دنیا هم دنیا دار دده دنیا
پس له مرګه به همه واړه مظلوم دي    ظالمان او ستمکار دده دنیا
تر قیامته دغه لس او دغه شل دي    پوره نکړو هیچا شمار دده دنیا
چه ایام ته د کفن او غسل ورشي    بې پردے شي پرده دار دده دنیا
په تخته باندې بیرون شي له حجابه    شرمناک او شرمسار دده دنیا
له هر چا به پیغمبر څخه وه ډیره    که څه قرب دے یا وقار دده دنیا

یو فساد به نه بیان په رحمن نه شي
تباه ونه دي بسیار دده د دنیا

هغو بیا موند سعادت په دا دنیا    چه یې اوکړه قناعت په دا دنیا

نه ملکونه د سلیمان په هزار کاله — نه یوه کړی طاعت په دا دُنیا
یو نفس دخدائی په یاد واوړلی تر دے — نه د درست جهان دولت په دا دنیا
په دنیا کښ لوټ هغو تالسواو کړ — چه یې اوکړه عبادت په دا دنیا
که نعمت دے خو طاعت او عبادت دے — گنړه نشته بل نعمت په دا دنیا
که محنت که مشقت دے خو دین دے — پکار نه دی بل نعمت په دا دنیا
بې له خدایه هرچه دی واړه فانی دی — که لذت دے که زینت په دا دنیا
که بادشاه اخوند ورولسره په دروی — څه عزت دے څه حرمت په دا دنیا
له هغه به زیات نادان په جهان نه وی — هرچه غواړی فراغت په دا دنیا
نه چه څو وخته فرصت په دنیا غواړے — چا موندلے دے فرصت په دا دنیا دنیا
عمارت په سر د ریگ روان کا نه دی — هرچه کا نه دی عمارت په دا دنیا
د مستانو تر لغزش څه کم نه وی — د سری استقامت په دا دنیا
هر زنده چه د مرده په قبر ورشی — بس دے همره نصیحت په دا دنیا
په روانو ابو ورشه غم گوره — ویر دے همره اشارت په دا دنیا
دا پاخه پاخه سرایونه محلونه — خود به وران شی عاقبت په دا دنیا
ورزی سترگی د اسمان څرهسی نه دی — چه څوک پریږدی سلامت په دا دنیا
هرچه راسی همه واړه ځنی دروی — مسافر دے هر صورت په دا دنیا
ریاضت په قیامت نه شی مرد هغه دے — چه یې اوکړه ریاضت په دا دنیا
هم په دا خوئی وخصلت به صبا پاڅی — خدائے څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا
هم هغه به نے خرمن وی پس له مرگه — هرچه کا نه دی زراعت په دا دنیا
که هغه جهان په دا کښ لیدے نه شی — زه یې وینم علامت په دا دنیا
په قیامت به بنه توبه ځنبله نه شی — مالیدلے دی قیامت په دا دنیا
امانت به د لحد په میانکښ پروت وی — هرچه اوسی امانت په دا دنیا
نیک عمل حضور جنت دی طاعت یو یه — چه حاصل که څوک جنت په دا دنیا
نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه — هم جنت دے هم راحت په دا دنیا
ضدیت د سری غم په عذاب کا — پکار نه دی ضدیت په دا دنیا

A.S.K.B

لاس په سر په سینه ایښي وهر چه ته — هم دغه دی شرافت په دا دنیا
که بلند مرتبه د چا پکار وي — لوئ مقام دي عدالت په دا دنیا
بل ارمان به له جهانه یو ور نه شي — مګر هر محبت په دا دنیا
د هغه جهان سودا واړه دلے ده — که څوک کاندی تجارت په دا دنیا
که طالع د سړي نه وي جاروتلی — هیڅ پټ نه دے حقیقت په دا دنیا
نیک له نیکو سره بویه بد له بدو — که څوک غواړي ولایت په دا دنیا
ولایت دے خدایې هغو لره ورکړے — چه یې ورک کړو سکونت په دا دنیا
که تمامه دنیا واړه سره یو شي — نور به نه کا څوک قسمت په دا دنیا
که څوک مرد دي خو هغه دے په دنیا کښ — هر چه نه لري حاجت په دا دنیا

په رحمٰن باندې دا عُمر هسې تیر شه
لکه تیر شي یو ساعت په دا دنیا

ښه ده ښه ده دا دنیا — چه توښه ده د عقبا
مذمت د دنیا مه کړه — دا وره پند کړه دا دنیا
په دنیا کښ لوئ حکمت دے — پرے پوهیږي حکما
که تر سر یې صدقه کړے — رنځ دفع کړي بلا
که غلیم لره یې ورکړے — غلیم دوست کا په هوا
که په اور باندے یې کیږدے — بوی د عودو کړي پیدا
که یې توی کړے په صحرا کښ — ښائسته کاندي صحرا
که یې نذر کړې و پیر ته — خوشحال درومي په خندا
څو ژوندی یې په دنیا کښ — یاد دې وي د پیر دعا
د خاتم په خیر دې ساقي — خطاب ورکړي د سخا
سخي هر یو دوست د خدائے دے — وَلَوْ كَانَ فَاسِقًا
هر بخیل د خدائے دښمن دے — وَلَوْ كَانَ زَاهِدًا
دنیا کښت د آخرت دے — دا خبره ده ښتیا
د دنیا طالبان ډیر دي — که یې مومي څوک له چا

ولي مرد ګڼې هغه دے        چه سخي وي هم پارسا

په دنيا کښې بدي نشته        که بدي نه وي له تا

دنيا بهر دے بجيږي        آئينه غونډے صفا

خپل خپل مخ پکښې ليده شي        که خوګ زښت وي که زيبا

هم خطر پکښې د سر شته        هم ګوهر دے بے بها

وفادار لره وفا شوه        جفا کار لره جفا

له يوه تخمه يې دردمې        له بل تخمه يې دوا

چرته خوند کاندي د زهرو        چرته خوند کا د حلوا

کار هسه واړه موقوف دے        د سړي په همت عا

سالکان دې ننداره چې شي        د خپل ځان په تماشا

هرچه کا هغه به مومي        دنيا ځائے دے د جزا

لکه دي هسے به پاسي        که نادان دي که دانا

که دانايي د پرهيزه        په رداپه نارو

فتوي ونه سد په ممکښې        پے متې کړه په تقوا

دنيا نه ده واړه دين دے        چه له زړه وي سيدا

وطاعت ونه ولاړ دي        هميشه ترلي مصلا

له حرامويي پرهيز دي        مشغول وي په پنځ بنا

کامه يې وي قبوله        هم په جهر په اخفا

د دنيا د کار د پاره        فرض مونځ کاندي قضا

هم صائم د رمضان وي        هم زکوة کاندي ادا

که يې توان د حج رسيږي        حج هم اوکړي په بيا

داپنځه بنا د دين دي        چه بيان يې اوکړو ما

چه يې يون په دا طريق وي        هغه کس دے اوليا

که يې مال د دنيا ډير وي        هيڅ دې نه کاندي پروا

دنيا بده د هغو ده        چه يې کسب وي ريا

یا یې تو له کا په ظلم — یا د خمرو په سودا
یا یې ورکړه په شرابو — یا یې ورکا په زنا
یا ناحق خونونه کاندي — یا مالونه خوري د حیا
عبادت که په خان فرض — د بادشاه د امرا
حق باطل کا باطل حق کا — په سبب د روئ ریا
نه یې ویره وي د خدائے — نه یې شرم نه حیا
دیوے ګیږے د پارهٔ — هزار خوني کا بیدیا
همیشه یې له ستم — واره خلق دي په غوغا
ګوش وهوش یې هرګز نه وي — د مظلومو په ژړا
د فرعون په خیر به ناست وي — بې پروا د کبریا
بتخانې وته یې مخ دي — و مسجد وته یې شا
اختلاط کا د بدانو — له نیکانو دي سوا

# ورځنۍ ته پېښه مه کړے

## خدایه هسے رنګ بلا!

راشه مه کوه له چا سره وفا — لږ ژوندون دے ضایع ګیږي بې وفا
په دنیا کښې هیڅوک نه دي پاتې شوني — واره تلوني دي که تۀ دي که صبا
دا یاران چه تۀ وتا وته جلوه کا — په دوه ورځې پس به واره شي فنا
که دیدن دے دوئ خوښ دي ورته ګوره — چه فنا شي بیا به کله شي پیدا
د خزان پا نړے چه بېلې شي له ښاخ — په حکمت به یې پیوند نه کا حکما
چه په زمکه شاشي پریوځي له آسمانه — بیا له زمکے ختے نه شي په سما
ګمان مه کړه چه بیا ستر ګو له درشي — هغه او ښکے چه له ستر ګو شي جدا
دا په هره ورځ چه خېژي بیل بیل نمر دے — هر چه پریوځي هغه نه شي ختے بیا
ګر جنت په زهد نه دي بې له فضل — هر سړے دے خپله غاړه کړي ادا
که د نن د پاره سل محنته وکړے — یو محنت به دے پوره نه شي فردا
که تمام جهان په خپله ګیډه وخوري — یاد به نه شي په دردو ا دپه ژغ

کہ یوہ دانہ دَ اوبڑی پہ لاس ورکړی　　هم دغہ بہ دِ توبنہ شی دَ عقبا
کہ یو څاڅکے اوبہ تېږی لرہ ورکړے　　دَ دوزخ او ستا ترمینځ بہ شی دریا
کہ یو څلہ سردَ خدائی دپارہ ټیټ کړے　　پہ قیامت بہ سربلند شی لہ هر چا
بازار دادے کہ څوک سود و سودا کا ندِ　　پہ هغہ جہان نہ سود شتہ نہ سودا
آشنایان کہ څوک پو هیږی تن یٔ وخت دَے　　چہ زاریږی یو آشنا تر بل آشنا
کہ ژوندون تہ مے خوهم دادے پہ جہانکښ　　چہ لہ چا سرہ تیریږی پہ خندا
خدایہ امان دِ کړہ لہ هسے زندګئ　　چہ نہ بد وائے لہ بلہ بل لہ تا
زهر بہ دی چہ پہ صلح پہ صلاح دی　　نہ شکرے پہ فتنہ او پہ غوغا
نفس پہ خاورو پہ خس ډک بہ دے بی غمَ　　نہ دَ غم پہ خاورو خس بخچہ حلوا
ماتہ ملا پہ مشقت پہ محنت بہ دہ　　نہ حرامہ همیانئ دَ چا ترملا
روند بهتر دے چہ څہ نہ وینی پہ سترګو　　نہ چہ سترګے پہ پردی حرام کا وا
ګونګ بهتر دے چہ نہ اوری پہ غوږو　　نہ چہ غوږ کا ندِ پہ بد ویل شنوا
دیو وددکہ پہ خوا درشی خو بهتر دے　　خدائے دِ بد سرے درنہ ولی پہ خوا
دَ جاهل تر همدمئ بہ بہتر وی　　کہ لہ چا سرہ همدم وی اژدها
کہ مشکل دی خو دَ زړہ د نور غول دی　　سہل کار دے سود و زیان دہ دے دنیا
سود و زیان د دنیا وارہ سہل کار دے　　خدائے دِ نہ کا څوک پہ سہل کار رسوا
چہ دَ دردر او دَ عزیز زړہ پہ آزار شی　　حاصل مشہ هغہ خپلہ مدعا
ګاہ دَ نور و رضا بویہ ګاہ هی خپلہ　　پکار نہ دہ همیشہ خپلہ رضا
بنہ خوارہ چہ یو یٔ خوری بل ورتہ ګوری　　خوارہ نہ دی هغہ زهر دی ګویا
چہ ښادی کیږے یو زمان وی غم یٔے تل وی　　دغہ هسے چارے نہ کاندِ دانا
لہ ځان هسے وبل وتہ نظر کړہ　　تکدستا دے هسے ځان وے دَ هر چا
منصفانو لرہ بویہ چہ انصاف کړی　　نہ چہ نخوتہ کا د حرص او د هوا
د سری پہ خاطر هر څہ هر څہ ګرزی　　هسے نہ چہ دارہ او ګنړی ردا
دیندارانِ دِ و خپل دین وتہ نظر کا　　څوک فکر و نہ دَ ثواب څوک دَ خطا
خدا[illegible] نہ کاندِ خطا دَ چا لہ لاسہ　　څہ نسبت دے د خطا او دَ عطا

هسې نه چې سړي واړه سره سم دي — څوک اعلیٰ دي څوک اوسط او څوک ادنیٰ
د هر چا حرمت په خپله اندازه دے — نه چې موږ نظر ځنې د اُمرا

زه رحمٰن له چا شکوه شکایت نه کړم
نشته بل دوست و دښمن زما بې تا

که څوک یار په جهان غواړي یار دے دا — یار دے دا که د جهان سنګار دے دا
خیال د زلفو زما تر زړه چاپېر شه — یا تر ګنج چاپېر شوے مار دے دا
دا جهان چې خدای له عشق پیدا کړے — د جمله د مخلوقاتو پلار دے دا
تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته — تر همه کارونو غوره کار دے دا
یو بلبل به د ګل نوم اخستے نه وه — که خبر وے چې ګل نه دی خار دے دا
بیا راتلل د دے جهان ته بل وار نشته — بل دا وار نشته بل وار نشته وار دے دا
د حباب عمر د دو کوري په څه دے — که څوک شمار کاندي د عمر شمار دے دا

د مجنون صورت په زړه کړه رحمٰن ګوره
ستا په عشق کښې هسې خوار و زار دے دا

چې له تا سره په سر کاندي سودا — بل به نه وي هسې ما غوندې شیدا
نه به ما غوندې شیدا وي په جهان کښې — نه به تا غوندې دلبر شي بیا پیدا
ما دا ستا جور و جفا دي قبول کړي — ولې نه شي د ژړا په ځاے خندا
بې دا ستا له مخه کوم دے که مکان دے — بند تو بیم نه چې دا ښې نه به دا
جدائي به د هیڅ رنګ قبوله نه کړم — خوږ نه دے روح کالبوت سره جدا
که روستو مقتدیان وړاندې امام وي — ما په تا پسې ده کړے اقتدا
زه یو نه یم درست جهان پتا مین دے — که بادشاه دے که ګدا دے هر که ګدا
کاشکې خط د امانې و ماله راکړے — چې له ما سره وعده کړې د فردا
زه په خپله په تا نه یم مین شوے — ستا له لوري په ما شوې ده ندا
زه په تا باندې مین یم له ازله — نه چې کړے م تر نن ورځ ده ابتدا
چې د ستا په عاشقۍ په تیغ شهید شي — د رحمٰن غاړه به هله شي ادا
د رحمان وزیري رنګ ته نظر کړه — چې مدام په تا پسې کاندي ژړا

که مېنې بې پېرځنې یار باندې رښتیا — آواره کړه او دل دین په دنیا
په وفا د دلبرانو غلط مه شه — دغه قوم دی بېوفا و کبریا
د خوبانو طایفه ده هسې شوخه — چې غوږ نه باسي د چا په واوېلا
د ډېرو نازو د ډېر کبر له سببه — عمل نه کړي په ګفتار د اولیا
دل و دین په یو نګاه د سړي یوسي — نه یې وېره له چا کېږي نه حیا
بل به هسې سرګردان په جهان نه وي — یا عاشق دی یا آسمان دی یا آسیا
ته چې ژغورې سر و مال په عاشقۍ کې — عاشقي داهسې چېرې ده د بېریا
د جنت له حورو تېر شه که یار غواړې — خدایې دې نقد د چا نه کاندې نسیا
د ساقي د لاس هسې پیاله نوش کړه — چې دې غوږ کا نه زړه خیرې د دریا
چې یې کېږي عاشق شوه د دلبرو — نظر نه کاندې په کسب د کیمیا

یو ګفتار ورلره بس کاندې رحمان
چې په هر ساعت پوښتنه کړي بیا بیا

عاشقي م په زړه وکړه ګذار بیا — بېګناه م لېبې بلې کړې په سر بیا
که د نن د خپل قسمت م په لاس و دې — ما به ستا له غمه وران کړه دا دفتر بیا
مالا نوم د عاشقۍ اخستی نه وه — جدایي د راته جمع کړه لښکر بیا
پس له مرګ به یې پیاله تا قربان کړم — که صورت م خدای پیدا کړه په محشر بیا
د هجران محنت م واړه له زړه هېر شو — چې م ولیده په سترګو ستا بشر بیا
چې احسان یې مخ پټ کړی په حجاب وه — خدای و ما ورته ښکاره کړه هغه نمر بیا
چې رقیب راته ترلی په زنځیر وه — خپل حبیب را باندې پرانست هغه در بیا
په یوه نظر یې زړه را غځه یو وړ — خدایې دې خیر کا چې لا وکړي بل نظر بیا

په وصال یې منت باراوسه رحمانه
په صدف کې دخل نشته د ګوهر بیا

دل و دین م په هغه ترک کړه فدا — لا یې نه حسابه وی د ګان بها
د بنایست صنعت یې څه کوم حیران یم — په هېڅ شان یې موندې نشي انتها
د صورت له غیبه هسې پاکیزه دی — که ذات وینسته نشته دی په ما

که یې مخ په زلفو پټ دی باک یې نیشته
تل په ګنج باندې پروت وي اژدها

نه پوهېږم چه په کومه لاره درومم
چپ وراست مې رقیبان دي هزارها

خدایه ډېر تنها نه کړه څوک په غم کښ
لکه زه د یار په غم کښ یم تنها

همیشه د بېلتانه له غم لوله
زه رحمن نعوذ بالله منها

ویره شوه په یار پسې ژړا زما
نه کړو هېرې په ژړا آشنا زما

که مې هره وینا دُر شي یا ګوهر شي
ستا د غوږ نه ده لائق وینا زما

په نارو به ما بیدار کړه که اوده وي
راته ویښ اوده شه دلربا زما

زه مکتوب غُنډ په پټه خوله ګویا یم
لاندې کړله خاموشۍ غوغا زما

ګښت دَ عشق په توده زمکه آسان نه دے
سمندر بویه په دے صحرا زما

دا یار نه دے چه هجران له مانه بېل کړه
دغه روح له تن شه جدا زما

زه رحمن بې خپل یاره هیڅ نه غواړم
که تبرک خدائے ته وي دُعا زما

عالمان دي روښنائي د دے دُنیا
عالمان دي دَ تمام جهان پیشرا

که څوک لار غواړي وخدائے وهم رسول ته
عالمان دي د دے لارے رهنما

کیمیا ګر که دَ کیمیا په طلب ګرځي
همدمي دَ عالمانو ده کیمیا

په مجلس دَ عالمانو به سره زر شي
که څوک کاڼے وي یا لوټه دَ صحرا

جاهلان دي په مثال دَ مرده ګانو
عالمان دي په مثال دَ مسیحا

چه مرده یې له نفس ژوندے کېږي
عالمان دي وارهٔ هسے اولیا

هر سړے چه رتبه نه لري دَ علم
سړي نه دے خالي نقش دے ګویا

زه رحمن حلقه بګوش دَ هر عالم یم
که اعلی دے که اوسط دے که ادنا

چه واده یې کاپه ډول او په سُرنا
بیا پرے وائي زمانه د ویرو ینا

که مې هر څو دلبري او دلجوئي کړه
زه پوهېږم دَ خپل یار په استغنا

په یوه ګړۍ مې یار هم مې آشنا شي
بیا مې بله ګړۍ نه لري آشنا

دا زه خپله تسلي کړم يار يې بولم | خديارى ده د ناتوان او د توانا
پو زمان ويوم بې خپله صنمه | زه بهتره تر بقا ګڼم فنا
هر سړے په يوے چارے خدائے مشغول کړل | زه مشغول کړم رب د تر کوپه ثنا
ما بي عشق بل هنر نه زده ناصحه | بخښنده شه که نادان يم که دانا
چرم غوږ په نارو نه باسي حيران يم | پروا نه لري که ورے دي که برنا

بے ديارله بنده ديدن د خدائي نه کا
د رحمان په زړه بڅنے بله تمنا

دا دنيا ده بي وفا | بے وفا ده بے بقا
نه يې غم شته نه يې خوشته | لکه لوټه د صحرا
په يوه ګړئ يې غم وي | په يوه ګړئ يې ثنا
په يوه ګړئ د ستا وي | په يوه ګړئ زما
په يوه ګړئ يې درد وي | په يوه ګړئ دوا
په يوه ګړئ خوف وي | په يوه ګړئ رجا
په ساعت کښې يې بقا وي | په ساعت کښې يې فنا
په ساعت کښے يې سکوت وي | په ساعت کښے يې غوغا
په ساعت کښے يې خندا وي | په ساعت کښے يې ژړا
په ساعت کښے يې وفا وي | په ساعت کښے يې جفا
په ساعت کښے يې افلاس وي | په ساعت کښے يې غنا
چه نه شان لري نه شکل | که دا شي کله دا

خدائے خوک پيښ مه کړه رحمانه
په دا هسے رنګ بلا

په بنا دې بنا شوے نه يم د هيڅ | تور تپ سوے يم په غم د هر آشنا
که زه طمع تو تمع له بله نه کړم | د بل طمع تو تمع کيږي له ما
کړم ورور کړم عزيز کړم فرزند وي | دا ره غواړي خپله خپله مدعا
په هر کور کښے رنځوران دا نه پراته دي | لاس يم نه رسي د هيڅ په دوا

د دنیا خبرې واړه په دنیا شي | ما به څه کا ښوک چه نه لرم دنیا
چه په کلي کښې مې کور دې زه ګمان کړم | چه کور نه دې دا مې کور دې په صحرا
چه څه کار پرې نه پوره وي نه نیمګړې | ښوک به څه کړه له هغو سره خندا
چه یې ښه توښه وبله سره نه شي | تر هغه آشنا بهتر دې نا آشنا

په توده زمکه استوږنه ده مشکله
څه به زیست شي له رحمن سره د چا

که چیل زړه غواړې له چا | ګمان صبا د کړه د عنقا
د حباب کلاه په سر کړه | سور په اثر شه د هوا
لکه خضر هسې پاسه | اوبه اوخښنه د بقا
له زمین قدم کیږده | په آسمان لکه عیسا
د هغه استاذ شاګرد شه | چه دروښیي کیمیا
دا چه ما درته بیان کړه | که حاصل کړې واړه دا

هاله طمع کړه رحمانه
له خوبانو د وفا

ستا په څیر نه دي خوبان لیدلي ما | نه په غوږ د چرې اوریدلي ما
هیڅ د ناله عاشقانو سره نه کا | دلبران دي واړه آزمائیلي ما
چه مې ستا د ښکلي مخ تنه دي کتلي | بل یو بل و مخ ته نه دي بیا کتلي ما
د زړه غولي مې نیولې ستا غمونو | نور غمونه دي له زړه ویستلي ما
چه مې کار د عاشقۍ په لاس کښې واخست | دي له بل کاره لاس ونیکلي ما
نور غمونه مې له زړه نه دي ویستلي | ستا غمونه پکښې دي کرلي ما

زه رحمن بې یاره خوب وخندا نه کړم
بې د نه د خوب خندا پسندلي ما

هسې مست یم ستا د شونډو په شراب | چه به نه وي بل دا هسې مست خراب
لاس دا ستا په مینه اچوم د مکل ته | لکه برتي ته لاس اچوي غرقاب
دا سرخي او سفیدي ده ستا په مخ کښې | که زما په مخ باران دې د سحاب

څرا ثر به زما اوښکے په تا کاندی ‌‌‌ لا تازه شی اور په اوښو د کباب

عاشقان دِ سترګے رونړے که په عشق کښے ‌‌‌ دا خوب نه دے منزل ګاه دے د سیلاب

ماچه خال د استا د روخو په میان ولید ‌‌‌ نه بل مے رنګ امام شته نه محراب

بنا پیری چه لیدے نه شی سبب دا دے ‌‌‌ څکه زیست په توره شپه کاندِ مهتاب

حجاب واخله مخ کړه توره د هغو خلقو ‌‌‌ چه تحسین که ستا په دور د آفتاب

هسے نه چه زهٔ دلبرو تا ته وایم ‌‌‌ خدائے دے تا لره درکړے دا خطاب

ستا د مخ په ورق یاندِ خط وخال دے ‌‌‌ د مصحف په صحیفو باندِ اعراب

ستا د حُسن حساب هیڅ را څخه نه شی ‌‌‌ هم په دا چه بے حساب دے بے حساب

یو کتاب په سربن کښ چا وُنهٔ کړهٔ
بے رحمانه چه یئے اُدکړ دا کتاب

چه یئے ولیدهٔ ستا حُسن بحساب ‌‌‌ له دے تصده تا وُپیدا شه له آفتاب

په ارزو دِ د نرګس سترګے غلو رشوے ‌‌‌ غنچه سره د زړهٔ په وینو شوه غرقاب

ستا په غم م سترغلی سرے سرے ناغی شوے ‌‌‌ با خیے دی سیاه پوشے سرهٔ طناب

که د زلفو په مخ پیچوتاب شوے بنایئ ‌‌‌ وینته څه طاقت لری د اور له تاب

زهٔ چه خدائے دا ستا د غم سره آشنا کرم ‌‌‌ خوشحالی م نور تا یا به شوه نایاب

سترغلی م د فراق په ډرا سره شول ‌‌‌ د سبزئ اثریئے پاشید له آفتاب

ماه خورشید دِ په بنائیست پوهے شرمیږی ‌‌‌ څکه مخ ننا کری د کوه تاب

زهٔ دِ پیژنم په اصل کښے خاکی یئے ‌‌‌ ځان به څوخښېږے په کوته له تراب

څو دِ خیال د آشنا کړئی په لیمه کښے ‌‌‌ خبر زده کړه ته د اوښو له سیلاب

د رحمان به بخت هاله د خوبه ویښ شی
که ته سترګے ورته پورته کړے له خواب

ورقونه لټوم د هر مکتوب ‌‌‌ پکښے غواړم خال وخط د خپل محبوب

یا تنور د نه یا دکان د آهنګرو ‌‌‌ چه په عشق کښے تصوّر کړم خپل مطلوب

په خندا خندا ځان اچوی دا ورته ‌‌‌ خدائے څوک مکره په جذبه د عشق مجذوب

زهٔ چه غم د دهرو یا نورا په زړهٔ کړم ‌‌‌ له دے غمه لا ارشم زړهٔ را څخه ډوب

که څوک عشق څرنګ آسان کړه و عاشق ته      دا مشکل مشقتونه د ایوب
په ژړا ژړا توږے حد ده را غے      چه ګمان رونده کړه په یوسف پسے یعقوب
عشق دا چه معشوقه شه و عاشق ته      بنه رخسار د مهرویانو په اسلوب
هغه شه پو بنتی له هجره له وصاله      چه پخپله هم محب شی هم محبوب

چه نظر یې له صورت په معنیٰ کړه
د رحمٰن و ته یکسان شو زشت و خوب

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب      را ته هیڅ شی خپل نالاش وخپل ترتیب
مګر خود پخپله خدائے د چا طبیب شی      ګنړه نشته په جهان کښے بل طبیب
را څرګند دے سود او زیان د رقیبانو      که خدائے نه کا نډ خپل یار د چا رقیب
چه خپل یار د چا طبیب شی مثل دا دے      لکه څوک چه په وطن کښے شی غریب
چه غریب شی په وطن کښے فرق یې نه وی      که نو ښکلے وی ترسیان که جریب
ما په عشق کښے هیڅ حاصل نکړه بې غمه      هر چه وائي دا ره به وائي ادیب

دښمن هم د سرې که کله دوست شي
دوستی نه کا د رحمٰن سره حبیب

که مې اوشی له دلبره ملاقات      یا به نه ځم له دے دره په حیات
په له دے م دا ستوږنه خدائے نصیب کا      په دا در کښے که حیات وی که ممات
ښائي دا که زهٔ خپل یار و ته سجده کړم      هغه یار زما قبله دے د حاجات
د خپل یار تر لعل و لبو به یې ځار کړم      که شکری وی که قند وی که نبات
دا زما د یار جلوه ده چه لیدهٔ شی      لکه نمر په صومعه و سومنات
تر ما لا په دلبرانو ډیر مین دے      چه خبرے کړے د کشف و کرامات
در یاله زاهدهٔ زما توبه ده      چیپے کاندی څوک په رسم و عادات
په ورځ پند و نصیحت وائي و بل ته      په شپه نا ست دی د مغان په خرابات
دین یې دا مروی د دنیا په لار کښے اینے      پره ولاره وی وحشیان د مخلوقات
د هغو په لوریې سترګے وی خستی      چه په لاس یې سر سایه وی یا زکوٰت
زهٔ رحمٰن له هسے اهل پناه غوارم      هر چه لاف کړهٔ په خلاف د مقامات

تاچه په دا تور وسترګو وکاته زما ته　　زړه دې زما تورکړه لړې نور مخلوقات

ماخوچه ته ولیدې هغه ساعت مې و و　　نور به مې مینه دزړه نه شي له تا مات

شیخ و زاهدان چه نصیحت وايي زما ته　　نه دی خبر شوی ستا دمخ له محسنات

څه وشوکه زه اشکست نا شوم ستا په مینه　　لا تر ما ته خوښ يې وته مني ترهم ملات

مرم په دا چه ماله تا چار باسي هغه خلق　　بیا دې په دیدن ترما رومبې درزغلي خوات

زه رحمٰن چه یار وو ینم وایم خدائې خیرکړي
کړه بنا پیرۍ ده دَ بنیادم له ذات

آفرین دَ عاشقانو په همت　　چه په عشق کښې یک انداز وي یک جهت

نه ئې هیڅ رې تغیر و نه تبدیل وي　　که تمام جهان پرې وائي ملامت

که څوک سل نصیحتونه ورته کا سرې　　غوږ ئې نه وي دَ هیچا په نصیحت

چه په یار پسې تر ځان وجهان تیر شي　　څوک کولې شي دا هسې مشقت

که تمام عمر يې یار په سترګو ناست وي　　تمام عمر ورته ښکاري یو ساعت

که یو دم شي هغه یار ورغځه لرې　　هغه دم شي ورته عمر دَ قیامت

که دوزخ لره دَ یار په مینه در ومي　　دوزخ هم ورته جلوه کا دَ جنت

دعشق لاره توکل په پښو غوځیږي　　نه په پښو دریاضت و دیانت

په تلاش او په تدبیر که مونده شي　　چه موقوف وي هغه کار په عنایت

دعاشق خاطر له غیره پاکیزه دے　　د دریاب په مخکښې نه وي نجاست

خدایه چه زړه طالب کاندې کړه رحمانه
کاندې پریوت دَ طالب په عمارت

چه وشیلی مې له تا دے دا حدیث　　سرنامه دَ هر انشا دی دا حدیث

چه آغاز مې کړه په مدح دَ خوبانو　　ځکه ګنج بے بها دے دا حدیث

په ثنا دَ دلپسند و دلربا ؤ　　دلپسند و دلربا دے دا حدیث

لکه باد دَ صبحدم چه غنچه واکړه　　هسې رنګه دلکشا دے دا حدیث

چه اوصاف مې دَ سرو شوندو پکښې راوړه　　خوږ تر تنګ د ترحلوا دے دا حدیث

نه پوهیږم چه اوبه دی دَ حیاتو　　که نفس دَ مسیحا دے دا حدیث

د غونډو ژبو شاعرانو د خولې نه دي ‏ ‏ ‏ څکه هسې رنګ صفا دے دا حديث
ستا د مخ تر که څوک شمس و قمر وايي ‏ ‏ ‏ دروغ نه دي په رښتيا دے دا حديث

که څوک وايي چه چا کړے دا حديث دے
رحمن وايي چه زما دے دا حديث

چه برهم که عاشقۍ د چا مزاج ‏ ‏ ‏ حکيمان يې درمانده شي په علاج
په آشنا پسے تل ژاړي په دوه سترګو ‏ ‏ ‏ دا د بو څڅانے خوناب کاندي اخراج
دواړه لاس يې له دوا پرې کونو ولي ‏ ‏ ‏ ډوب دی تل د عاشقۍ په امواج
په هغو کښے چه څه بوي د عاشقۍ وي ‏ ‏ ‏ چه په نوروي موقوف ده احتياج
ليونتوب له ليونو نه ستلوني نه دي ‏ ‏ ‏ که يې راج په خونه ورشي که تاراج

که يې سر لکه منصور غونډ په دار شي
دغه دار دے ورحمن وته معراج

چه خبر شوم د ساقي د جام له راح ‏ ‏ ‏ لکه مړے ملاقي شوم له ارواح
زه چه زلف د يار دوينم په خوب کښے ‏ ‏ ‏ په شپه مشک را باندي وري تر صباح
صبا زيري د وصل په مجبور کاندي ‏ ‏ ‏ د هوا د خبر موندے شي له سياح
که دوا که خون خوردن د عاشقانو ‏ ‏ ‏ څوک وتي شي د خوبانو له صلاح
هر ساقي چه جام د عشق لري پلاس کښے ‏ ‏ ‏ دا پياله يې په مستانو ده مباح
مخ که بے مينے څوک ستايي ستايه نه شي ‏ ‏ ‏ د ممدوح له قدره چرته ده بي مداح

د دنيا ناوے په عقد کښے دين غواړي
اے رحمانه ځان يې ژغوره له نکاح

چه پيدا شو ستا چشمان دا هسے شوخ ‏ ‏ ‏ نور به نه وي مردمان دا هسے شوخ
کږ زلفان کږ ابروان لکه چه ستا دي ‏ ‏ ‏ نه لړم شته نه ماران دا هسے شوخ
ډير غمونه شوخ شوخ شته دے په جهان کښے ‏ ‏ ‏ دلے نه لکه هجران دا هسے شوخ
مکر ديو وي چه بے غم دي په هجران کښے ‏ ‏ ‏ کنه نه به وي انسان دا هسے شوخ
دا فتنے او فسادونه به وُو چرے ‏ ‏ ‏ که پيدا نه وي آسمان دا هسے شوخ
دا آشنا له غم زړه د آشنا نه څوي ‏ ‏ ‏ آفريده کړ خدائے جهان دا هسے شوخ

چه یوسف یې د دنیا په متاع ورکړه　　آفرینه کړه خدائ جهان دا مې شوخ
چه بوسه له یاره غواړي بې ادب　　خدائ دِ نه کاندِ رحمٰن دا مې شوخ

بادشاهانو که قصرونه کړل آباد　　ما د عشق عمارتونه کړل بنیاد
نوم دکوم یوه بادشاه مې یاد نه دی　　تکه نوم دے د مجنون او د فرهاد
عشق عاشق له یو مې پیر استاد دے　　چه به نه وی بل دا مې پیر استاد
دغه واړه کرامت د عاشقۍ دے　　چه څوک غوث کاندِ څوک قطب څوک اوتاد
د دنیا چارے همه واړه فاني دی　　څوک به څه کا په دا چارو اعتقاد
تکه سوری چه د نمر په مخکښې ګرزی　　نه استوګنه چرته کاندِ نه استاد
هیڅ دنیا یې له هیچا سره وُ نه کړه　　که جمشید وه که بهمن وه که قباد
که جمشید وه که بهمن وه که قباد وه　　که نمرود وه که فرعون وه که شداد
رسولی یې ترمراده هیڅوک نه دی　　همه واړه مې پاتې شول نامراد
نه یې ختم د دعا ورپسې وُ کړل　　که یې آل که یې عیال که یې اولاد

زه رحمٰن د زمانے له جوره دروم
خپل صاحب له په داد و په فریاد

که قاصد یې د مقصود　　آواره کړه زیان وسود
هرچه درشي ستا د وړاندې　　داوره وُ کړه بهبود
هرچه دي سوی له خدائ　　واړه وُ کړه نابود
رضا پاسله قضا ته　　صدا دخوښ اوسه خوشنود
وهتی وته حنوه کا　　تکه ابر هسے دود
تهٔ وځان وته نظر کړه　　چه قبول یې که مردود
نندارچي د خپل صورت شه　　چه مسلم یې که جحود
امتی دابراهیم شه　　تابع مه شه د نمرود
دغفلت له خوبه پاسه　　څوبه اوسې خواب الود
مقید و مشغول اوسه　　په دعا و په درود
آسمان طور په رکوع شه　　زمین طور په سجود

که بیدار شي خود به وا وري — په هر لوري دا سرود
که آیاز غندې بنده شي — نو به ناز کړه په محمود
هر اسباب د بنو د سد و — مهیا دي هم موجود
که داناي د بله بیل کړه — فرموده و نافرمود
خو سپند نه شي په اور کښ — نه وي خوند د بوی د عود
ځان له خبث پاکیزه کړه — لکه بحر نا معدود
هلاک ځکه شي رحمانه — چه پاک نه شي دا وجود

## رحمٰن بے د یار له ذکره
## نه زده بل گفت وشنود

زه که لاف د وفا کړم هر چند — هغه یار م باور نکړي په سوگند
زه بي یاره هسے زیست کړم په جهان کښ — لکه زیست وي په مجمر کښ د سپند
آبروئي د طالبانو خپل مطلب دے — آبروئي د غلامانو خپل خاوند
لکه یار مې سربلند دے په جهانکښ — په تاثیر ئي هسے زه یم سربلند
لکه یار م سربلند دے په جهان کښے — زه هم هسے په دا دور کښ څرگند
چه م مدح د خوبانو کړه آغازه — هر کلام مې دلپذیر شه دلپسند
لکه خوند لري زما خوږ ے خبرے — په شکرو کښے هم نشته هسے خوند
هغه قند چه خدائے زما په خوله کښ کیښود — حلوایانو څخه نشته هسے قند
لکه زه چه سخندان و هنرمند یم — بل به نه وي سخندان و هنرمند
په اشعار کښ توتنک لکه زمرے یم — ولے نه یم د زمري په څیر گزند
هم په مدح دهم په هجو بنه پوهیږم — ولے نه یم په دا چارو دیر خورسند
بے له خشته که م غیب که م هنر دے — ما غوڅ کړے دے له ځان بن پیوند
زه عاشق یم سرد کار م دے له عشقه — نه خلیل نه داوډزے یم نه مهمند
چه وما ته نصیحت که څوک په عشق کښے — گویا پلار ته نصیحت که فرزند
هر سړے چه آئینه په لاس کښ خاندي — گویا خاندي په خپل ځان پورے رشخند
رنگ ریزان دي اول خپله زیره رنگ که — بیا هله د و رحمٰن ته وائي پند

ستا په عشق کښې هسې خلاص یم له شعوره — چه یوه خبره نه لرم منظوره

طبیبان وائي چه صبر دې دارو دي — خدائ زمونږ فرقه پیدا کړه ناصبوره

توره هر چرے ترلې په دښمن شي — یاره ستا سترګے دوستان وژني په توره

معشوقي د زړه ماني شوے سره نړولے — د زړه خونه مې نړیږي ولو ټټله چوره

زه تنها په ضرور نه یم ستا له غمه — پیدا شوے عاشقي ده له ضروره

هره شپې لره ورځ شته دے په دنیا کښې — زما عمر جدائي کړلو بې نوره

مهرویان وفا له هیچا سره نه کړه — دا خبره په عالم کښې ده مشهوره

له حیرته واره ګوتے په غاښ نیسي — په هجران کښې چه خبر شي له مهجوره

د رقیب له بدو سترګو دِ ځان ژغوري — هر عاشق چه بهره مند شي له حضوره

همره توان و توفیق نه ګڼم په بخت کښې — چه تائب که ماله فسق وله مجبوره

په نظر د مدعیانو تور کودي دي — که يې کښېنوم د کټ د پاسه حوره

د رحمٰن دسترګو نم به هاله وچ شي
که وچ شوے د چانم وی له ناسوره

همره اوښکے مې بهیږي په رخسار — چه غرقاب مې هم ګریوان دے هم کنار

هغه یار مې هسے ناست د زړه په سر دے — لکه ایښې چه چا ګل وي په رخسار

که خوک وائي چه مار کله په کټ خیژي — زه خوړلے یم په کټ د زلفو مار

خود یار بیماري سترګے خدائ خوني کړے — ګوره خون کله کولے شي بیمار

که په دار شم زه د یار د لاس خوښ یم — سرو قد دے زما یار و زما دار

بس کړه دا چه زه په یار پسے غوث غوث یم — خدائے دِ نه کړم لکه زه یم هسے یار

همره جور چه لکه یار ما سره کړه — یاد مې نه دي همره جور دا غیار

دلبران کودي جادو کړي زړونه اخلي — هغه وایه چه بې کوډ وي دلدار

چه د زړه و نوله نا غلولې پروا دے — ترو که زړه د زړه یوسي څه پکار

په ګریوان ئے تل دا وښکو باران ووري
نه ورکیږي د رحمٰن د زړه غبار

چه د زړه پورے ترلے استوار — دا جهان دِ د نیکه دے که د پلار

تهٔ خپل پلار و نیکهٔ د کوره چه څه شول — هغه ستا د هم په دوئ پسے رفتار
تل په میږے دروستي پل ډے پرتیریږي — کړه نهٔ دهٔ چا په پل باندې قرار
هغه نهٔ چه زهٔ یو ازے تاته وایم — راغله لاړه ستا په طور صد هزار
دعوی مکړه په ناحق بیئې خپل نهٔ کړے — پردے بهٔ هر ملک پردے پردے دیار
چه استوګنه په پردي وطن کښے کاندي — هغه نهٔ لري د هیڅ واک و اختیار
که هزار قسمه وخوري په یو کار کښے — نه کا څوک په مسافرو اعتبار
چه صبا شګفته کیږي ما بنام رژي — څه امید دے په ګلونو د ګلزار
که دې دور که دې عزیز وي که دې یار وي — مه ئے زور مه ئے عزیز ګڼه مه یار

چه پیدا شي هغګي واره فنا شي
اے رحمانه دا جهان دے دا ئې کار

څو چه قبوله نهٔ کړي دا غیار — ډبه نهٔ وینې په سترګو مخ دیار
چه اول ئې خار زرغون شي په پهلو کښے — غنچه هله شګفته شي په ګلزار
جنت چا په ریاضت موندلے نهٔ دے — ولے بویه هر بنده لره خپل کار
که موندهٔ شوے خوشخوئي په خوشبوئي کښ — پروت بهٔ نهٔ وهٔ په چمن ئې باندې بشمار
آب تر لعلو د لاله ګلونو دیر دي ؛ — بخت مه دا چه څوک عزیز کاندې څوک یار

هسے ریب کا په بیاض د رحمٰن شعر
لکه زلفے د خوبانو په رخسار

څوک دې را کاندې قسم په کړ د ګار — که درم لرم په کور کښے یا دینار
زهٔ دینار و درم نهٔ لرم پکور کښے — ولے نور عالم م بولي دنیا دار
هم په دا چه نهٔ له ځای چرته خوځم — نهٔ د هیڅ یوه مخلوق یم منت بار
نهٔ م ښکته ملک لیدلے دے نهٔ پورته — خبر نهٔ یم په یپنې په بیار
آب و خور لکه ګیاه په ځائے را رسي — په خپل سکون کښ م سکون دے هم رفتار
لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم — که خزان را باندې راشي که بهار
توکل م لاس پښے سره کړه په نکریزو — چه په ځائے کښینولے یم قرار
چه زما په باب کښے کښلي دي را رسي — که رحمت دے که رحمت دے وار په وار

چه هژده هزاره تومونه یې پیدا کړل | مربي ئې دے هغه پروردګار
کار همه په اراده د خدایے موقوف دے | هیڅ موقوف نه دی د چا په انتظار

غم به هیچرے دُ نهٔ کا په دُنیا کښے
که څه کیږی د رحمن پدا انتظار

که د عشق لاره اغزنه وی هر کور | د عاشق په پښو څپلی دی د اُور
که دیدن دیار مونده په انتظار شی | زما سترګے دی شبنم غوندې خلور
تیغ داو سپینو محتاج د نرم آب دے | قرب وحلم یو په سل دے زیات پزدر
له لویې له سرکشۍ زما توبه ده | خدائې خوک مکره د آسمان هسے نسکور
خدائې زده څه سودا به پینه په بازار شی | د بازار خبرے نه شی په خپل کور
داهمه واړه عاشق لره پیدا دي | که تهمت که ملامت دی کړ پیغور
جفا ناز وجور وکبر د خوبانو | ما پخان دی قبول کړی لکه پور
راحت بے زحمته نه دے چا موندلے | غم ښادۍ دی دواړه هر خور و رور

رحمن هسے په خپل یار پسے غوځ غوځ یم
لکه غوځ په خپل اولاد وی پلاره مور

داخه مخ دے منور | چه هم شمس دے هم قمر
داخه زلفے دی مشکینې | چه هم مشک دی هم عنبر
داخه پیوسته ابرو دے | چه هم نیش دے هم نشتر
داخه سترګے دی تا ښتے | چه هم سیف دے هم خنجر
داخه شونډے دی میګونې | چه هم مے دی هم شکر
داخه سپین سیځلی غاښ دی | چه هم درګوهر دی هم ګوهر
داخه سیب زنخدان دی | چه هم سیم دی هم ثمر
داخه قد وخه قامت دے | چه هم ګل دے هم عرعر
داخه ملا ده باریک وضعه | چه هم موی دے هم کمر
داخه زړه دے د خوبانو | چه هم موم دی هم حجر
داخه یار دے نه پوهیږم | چه هم دل دے هم دلبر

داځه بُت دے زمارب　　　　چه هم بُت دے هم بشر

داځه شعر دے رحمانه
چه هم ګنج دے هم هنر

دغه یار دے دا هنیار!　　　　دغه ګل دے دغه خار

دغه ګل دے دغه خار دے　　　　دا منصور دے دغه دار

دا رقیب دے دا حبیب دے　　　　دغه ګنج دے دغه مار

دغه عشق دے دغه عقل　　　　دغه غم دے دا غم خوار

دا هجران دے دا وصل دے　　　　دا خزان دے دا بهار

دا طاعت دا معصیت دے　　　　دغه نور دے دغه نار

دا عالم دے دا جاهل دے　　　　دا خفته دے دا بیدار

دا رحمن دے دا جانان دے
دا طبیب دے دا بیمار

هرچه نه وی خوار و زار　　　　په طلب دخپل دلدار

تر پېروني صدته شه　　　　دهغه عاشق دستار

هزار حیف دے هزار حیفه　　　　هزار ځله لا صد هزار

چه عاشق په عاشقۍ کښ　　　　نه حلال وی نه مردار

نه پتنګ د خپل چراغ وی　　　　نه بلبل د خپل ګلزار

نه مجنون غوندِ رسوا وی　　　　نه منصور غوندِ په دار

دوا به نه کېږی رحمانه
یا به یار شی یا بیزار

زه عار نه لرم په عشق کښ نه له پیغور　　　　بے پرواه یم دستی په ځیر له اور

کدی په خوله دسمندر مچه رد مر مر　　　　چه څوک مامنع کوی دعشق له شور

به هجران زما بله خواری نشته　　　　ولی نشته تر دا بله خواری نور

لکه ته چه خدائے هرکوره بنائسته کړے　　　　زه هم هسے بی صبری کړم هر ګړ ید

چه په تورسپین مِرا روی داخوک دی　　　　که ته ندئے په مخ سپین په زړه تور

د رقیب له بد خویۍ به څه وایم — لاچه یار درسره مل شي هاله تور
چه یې پور د مرګ تر پور پورے وایم — هغې توبه د بیلتانه له بد پور
عاشقي سرے مجنون کاندي رحمانه
ګنړه څوک په هوښیارۍ وو زي له کور

ماچه جور و جفا بیا مونده له یاره — دوفا طمع به څه کړم له اغیاره
له د بنتو به د بنادۍ طمع څوک څه کا — چه د دوست د لاس غم شي ورد دغاره
د اکلام ډیره نه ډیره له هغو شي — هرچه طمع ترے د ښو کیږي بسیاره
دل آزاره که دل آزار کا مانه نه شي — حیف خو دا دے چه دلدار شي دل آزار
طالبان خو تو مطلبه پورے پره دي — خدائے دِ تا بي وفا نه کا وفا دار
که له ډیرے حیا نه ګوري رچا سته
غوغ ږغ کړه د رحمن د زړه د پاره

هسے تله کاندِ د ګورته یاران زر زر — لکه تله کاندِ خپل ګورته یاران زر زر
هسے زر زر مرګ په مونږ شتابي کا — لکه لو د پاخه کښت کا دهقان زر زر
هسے زر زر دا دنیا د بله ادړي — لکه ادړي د بله ریګ روان زر زر
هسے زر زر صورتونه دي نړیږي — لکه ریږي لاله زار په خزان زر زر
هسے زر زر دا شیرین عمر تیریږي — لکه بحر چه بهیږي روان زر زر
هسے زر زر خپل ول د بنړو نه وي
لکه درومي له جهان رحمان زر زر

چه په زور ورسره نه یے برابر — د هغو تر څنګ مه کښینه زړه ور
زور آور او ور او به دي فهم وکړه — چه ډوب نه شي یا و نه سیزي بشر
زندګي که یے بے اوره بے اور نه شي — تل هم نه دي هیچا ایښي په تهتر
خدائے ورمه وله سیلاب چا په خونه — که په قطع هم او به وي هم کوثر
او دِ نه ګیږي او د په کور د هیچا — که رڼا یي وي د دښمن وه د قمر
چه یے درست صورت غلبیل شي په اغزیو — وخو رمه شه د هغې و نۍ شر
د هغه دیوال په سوري څوک کښے مه نه — چه ولاړ وي لکه زوړ ند چاؤ د کمر

چه په کيږه د خرخيبرې مغ نيغې ورک شه　　که د سرو زرو چاړه وي يا خنجر
ناکوده سودونه وړدي په جهان کښې　　سودخه دي چه د خيروي نه د شر
واوبوته اچاوه نه شي ځان خوږ نه دے　　ګټه وړدي په درياب کښې د ګوهر
چه له آب وله حرمت سره نه وي　　خدايه ورمه کړه وچا مے سيم د زر
زدره ورکه رسوي وچا ته فيض　　له دے فيض سره وکړه ضرر
په ياري د زورآورو غلط مشه　　مګر دا چه ترد اته يې زورآور
په هر وخت چه ته غالب وې مغلوب وې　　ترو هاله يې قدمونه يږدي په سر
يا خو دا چه قدمونه په درنه يږدي　　دغه پس يې ځان وکړه پدر

چه هنر کړي ياري د زورآورو
زه رحمن کوم بول په دا هنر

په نظر د بے بصر　　لکه شام هسے سحر
لکه شام هسے سحر　　لکه سنګ هسے ګوهر
لکه سنګ هسے ګوهر　　لکه خاورے هسے زر
لکه خاورے هسے زر　　لکه خير هسے شر
که ښوک ښه ورسره کاندي　　تر بدئ وي بتر
که ښوک بد ورسره کاندي　　تر نيکئ وي بهتر
نه پرے بد و ښه پيږني　　نه پر ښه د چا وي چاربر
په صواب په خطا يئ!　　نه دليل وي په نظر
نه اګاه په خپل بهبود وي　　نه اګاه په خپل ضرر
نه په غيب باندې پوهيږي　　نه پوهيږي په هنر
لکه ړوند و کوڼ چه ګوري　　هسے هيڅ نه وي خبر
له طاعته له ګناه　　چه خبر وي ګناګر
ګنا ورونه نورشه زده　　يا يې خوب وي يا يې خر
داخو ته يې زما نفسه　　چه يې زه کړم کور وکر
تمام دوتي له عقله　　په دنيا کې اوتر

نه دِ فرض دَ خدائے ادا کړه ‌ ‌ نه سنت دَ پیغمبر
نه دِ مرګ په زړهٔ یاد یږی ‌ ‌ نه خواری دَ محشر
او وهٔ پروت یې دا د نهٔ زده ‌ ‌ چه پخوا لرم سفر
په هر دم درغځه دروځی ‌ ‌ که پوهیږی دا بشر
هغه تور ویښته دِ څه شول ‌ ‌ چه هم مښک وو هم عنبر
هغه قد دِ مجنون بید شه ‌ ‌ چه چنار وو یا نښتر
تن دِ هسته زیر و زبر شه ‌ ‌ زړهٔ دِ نه شه لړو ببر
ترینجاه ترپنځ تیر شوے ‌ ‌ نه لا ځان بولے په سر
نه دِ ترس شی نه دِ ویره ‌ ‌ نه په زړهٔ باندِ ے اثر
بل به نهٔ وی لکه ته یئے ‌ ‌ هسے شوخ دغه کردر
په غفلت دِ عمر تیر کړ ‌ ‌ نه رهزن و شوی نه رهبر
عبادت دِ په ریا شه ‌ ‌ لکه ډک په لاکو زر
لکه قلب ناسره مهر ‌ ‌ پټ په زرو کښے حجر
لکه پټ وی په دا نه کښے ‌ ‌ سل اغزی د شجر
لکه سحر چه بر پا ئی کا ‌ ‌ سحر کړو جادو ګر
لکه تش صورت بے روح ‌ ‌ چه تصویر کا مصور
لکه تش کدو بی مغز ‌ ‌ میان خالی وتن پرور
لکه زرے په میوه کښے ‌ ‌ درون سنګ بیرون ثمر
لکه بے لاس لستوڼړی ‌ ‌ سوتر پایې پائې ترسر
لکه تِک د دغا باز وی ‌ ‌ په مرغانو کښے د ګر
لکه بي ننګ ناوے ‌ ‌ چه په سر کاندِ میزر
تو میزر لاندِ چا څه زده ‌ ‌ چه دختر وی که مادر
نه ئے حسن نه جمال وی ‌ ‌ غلوی خلق په زیور
هئ له هسے فریبیانو ‌ ‌ لکه زدرند جادو ګر
نیم په زمکه کښے دننه ‌ ‌ نیم برسیره لکه غر

پرستار کښې مسواک دي　　تر بغل لاندې خنجر
په ابرو کښې پټ بڅري　　په دنبو کښې پټ شرر
په شپه ویښ د مظلوم خوري　　صباح کښېني په منبر
په زړه تور لکه تبې وي　　په مخ سپین لکه قمر
د دنیا په طلب ګرزي　　خپل ځان بولي قلندر
کلمه په ژبه وائي　　په زړه نه لري باور
په مثال د منځ نقو　　نه مسلم وي نه کافر
نه مسلم وي نه کافر وي　　نه پخلا نه مرور
پریشان ګرزي سر رهلي　　کوې په کوې در په در
همیشه رفت و آمد کا　　د زردار درپه ګذر
په کوښه د دنیا دارو　　ګو خوري کا لکه خر
اورنګ زیب هم یو فقیر دو　　چه تو پټۍ ئې وه په سر
د تو پټۍ وته په شا کړه　　چه تا درښه په انسر
خوئي هم د فقیري وه　　چه شه نه وو میسر
چه ننګ ئې یاري و کړه　　نور ئې ملک کړه مسخر
ګوره څه چارې ئې وکړې　　په عیال د خپل پدر
دار په دار تر تیغ ئې تېر کړه　　د خپل تمام ټبر
یو تهبر د خورم خښ دو　　وير عالم ئې کړه و بر
تمامي جهان ئې و نغړو　　چه ئې لاس شه باندې بر
په فریب فریب ئې خپل کړه　　بیجاپور او بهاګ نګر
بیجاپور بهاګ نګر څه وو　　لوچینجا و چینجاور
هم ئې هند په ډکه واخست　　هم کابل و پېښور
بیا ئې ذکر شو په زړه کښې　　بادشاهي د هفت کشور
د حرص ورته هیڅ شو　　هم دارا هم سکندر
خیال ئې داده په خاطر کښې　　چه به خپل کړم بحر و بر

باری ورځ ورځنی لاړه !        وقت پرې راغی ماښیګر
نه یې مراد د زړه حاصل شه        نه یې یخ کړه منګل تتمر
همګی شو ځنی پاتې        که یې ملک وه که لښکر
خالی لاس د دنیا ووت        لکه عین دریوزګر
له دنیایي هیڅ یو نه وړو        مګر شوله یو څادر
خوار حیران په زمکه پریوت        بې بالین و بې بستر
نه پوزې شه تر د لاندې        نه تر لاندې شه تبغر
د پیړې په شیر خفیف شه        چه ثقیل وه لکه غر
د سیلاب په مخکښې لاړ شه        لکه خس وی یا وزر
حق یې پاتې په ګردن شه        د سپاهی و د چاکر
اوس یې زه په حق دعا کړم        که یې خدای کا بهره ور
حق تعالی که یې نصیب کړه        د غه شیرین حوض کوثر
د جنت په خوشبو یې یې        خدای یې دماغ کړه معطر
په درست هند باندې حق وه        هند یو شپه وی دی وه قمر
ووت قمر په روښنایي        تمام هند وه منور
په رڼایي خلق زیست کړه        نه څه خوف وه نه خطر
خو چه مخ یې په غروب کړه        نور پیدا شه شور و شر
چه په نوم یې اورنګزیب وه        و خوړ ګاؤ هغه دفتر
اوس نوبت د شاه عالم دې        دور تېر شه د دګر
خدائ زده ده څه بازي شي پسه        عاشورا شي که اختر
رنګا رنګ بازی کاندي        د آسمان دې بازیګر
کله تلخ لکه زهر        که شیرین لکه شکر
چه څه و شو هغه و شو        لابد کیږی مقدر
ماخو نوم د اورنګ واخست        د احوال دې دهر هر
هر سړی د ځنلی خوني        هم بادشاه دی هم سردر

هرچه اهل د دنیا دی ... داړه هسې دی اکثر

دا بیان د در و درانه وه

## رحمٰن وکړه مختصر

خدایې زړه د رقیب نرم په احسان کړه ... ماله یاره یار له ما سره یکسان کړه

هغه درد چه د آشنا د بیلتانه دے ... دفع رفع ئې د وصل په درمان کړه

غم د هجر چه تیرے تر اوره سخت دے ... له دے غمه مې په امن په امان کړه

کاروبار د عاشقۍ چه ډیر مشکل دے ... دا مشکل زما په ما باندې اسان کړه

حجاب لرے کړه زما د یار تر میانه ... بے حجابه مخ د یار را ته عیان کړه

که مطلب د نور چا نورے مرتبے دی ... ما گدا په آستانه د خپل جانان کړه

که دا نور عالم و بله خواته ځی ... ما په لوری د دلبرو نگران کړه

زه چه یار له ورځم په هغه لارے ... مهتر خضر مهتر الیاس مې رهبران کړه

تاریکي د معصیت را څخه واخلی ... د طاعت په روشنائی مې زړه روښان کړه

چه زما په پریشانۍ ئې زړه نه کیږی ... زړه ئې ما غوندې په یار پسے پریشان کړه

چه زما په چمن راشی گستاخی کړی ... د شبنم په څیر ئې غم یو زمان کړه

چه آزاده د منکر ترسره پریوزی ... د نلک په څیر مې توره د زبان کړه

هغه غشے چه د ترکو د غمزو دے ... هر کلام مې د هغه غشی پیکان کړه

چه کشور د افغانانو معطر شی ... د هر بیت مصرع مې زلف د خوبان کړه

چه هر حرف ئې د نانو هسے خوشبو وی ... برکت مې په جزدان په قلمدان کړه

نه چه ما منع کوے دیار له لوری ... کاشکے باد د سحر منع په بوستان کړه

نه به ما منع کړے نه له خپله یاره ... نه به کوز په زمکه پورته د اسمان کړه

الهٰی د خپل حبیب له برکته

دا ساده انشا نگینه د رحمٰن کړه

ما په تا پسے د اپینے جامے رنگ کړه ... ته لا بیا په ماکیان د نام و ننگ کړه

هیڅ اثر د سنگین خاطر و نه شه ... که هر څو مې مصلے در پسے تنگ کړه

دلسوزی به د په نور و کړې څه شی ... چه د له ما غوندې مخلص سره جنگ کړه

دانارے سورے په عشق کبے دی غمازے      کنزه تل به د بلبل په شیر پتنګ کړ
عاشقی و معشوقی ته سینه لاس ده      ته و ماوته دا سپینه لا زګرنګ کړ
چه یو دم م له نظره نه یو خوا شی      دا جهانکه لحد را بانډی تتنګ کړ
په بنه خوئی سره د خلقو افسانه یئے      خدائی زمالا کم نجتئ په زره سنګ کړ

دا دِ خوک له سنګ ناست دی نه پوهیږم
چه خبرے د رحمٰن سره په جنګ کړ

تا چه مخ د پري ستر کے دا هو کړ      نه پوهیږم چه آهو یئے که جادو کړ
دعا کوچه د چا و مری څه بنا دی ده      ته په څه زما و مرګ و ته ارزو کړ
په محراب د عاشقانو کا نړی دُو زي      ته په چین د جبین څو ته په ابرو کړ
تا چه زنګ د کو واخست نه پوهیږم      زر غوند به په چهره زما کنګو کړ
تاله ډیره ډیره جوره معلومیږی      چه به ما څنپلو او نکو کبنے راهو کړ
که یو ځل تو رے زلف کړه پریشانه      خاکستر به په چمن کبنے کثمالو کړ
درست جهان به قاف تر قافه معطر شی      که یو ځل شانه کړه په ګیسو کړ
تا د زلفو مار خوړلی به روغ نه شی      که افسون د مسیحا و ربانډی پو کړ
لاس و پښے دِ بي زیوره بنا ښته دی      څه منت به د پا ئیلو د باهو کړ

که سوزن د بڼو را وری تار د زلفو
د رحمٰن د زړګی زخم به رفو کړ

که د عشق شکرے تیرے تر ګلو کړ      خور لذت به لکه زهر هسے تو کړ
که د دِ شی ملاقات له سرو قد و      د فاخته په شیر به کوکے په کوکو کړ
عاشقی به تیره توره در پلا رے کړه      نور د صبر د سکون په ملک به هو کړ
په انصاف و عدالت به نوشیروان شی      هر عمل چه د خپل ځان په ترازو کړ
د سکندر په شیر جهان به دِ دروزی شی      که سرکوز په آئینه د خپل زانو کړ
تر یخ لوګے به دِ د تند په شیر نغرده شی      که صورت د عشق په اور کښ تماکو کړ
وُ به نه وینے د ترکو برندے ستر کے      مګر خان په خپلو وینو کبنے سالو کړ
روغ به نه شی بي دیار له بنده دیدن نه      که سل پنډه سپیلنی و ځان ته لو کړ

د غفلت لیچن لیمه به د بینا شی ‏ ‏ ‏ ‏ که دیدار د کوڅې خاورې د ښځینکو کړې
دا دارو بد دوائي کوی طبیب ‏ ‏ ‏ ‏ چه دیدار په درد و غم کښې م دارو کړې
نصیحت په عاشقانو اثر نه کړه ‏ ‏ ‏ ‏ دا محنت واره بیځایه بې تابو کړې

په رحمن باندې یاره خواب حرام دے
که یې سل بالښت لاندې تر پهلو کړې

که نظر په ماتوګړو د روزګار د کړې ‏ ‏ ‏ ‏ هره نه دی چه حساب یا به یې شمار کړې
په هر غم کښې خاموش اوسه او که نه وی ‏ ‏ ‏ ‏ د بد خواه خاطر به ښاد دوست به آزار کړې
صبر و نیسه په هغه کښې که مراد غواړې ‏ ‏ ‏ ‏ په تلوار به هیڅ او نه کړې که تلوار کړې
رضا پاسله و قضا ته فراغت شه ‏ ‏ ‏ ‏ او که نور څه تور وائي ځان به خوار کړې
آزادی او کاروبار د سره لرې ‏ ‏ ‏ ‏ لاس له کاروباره وکاږه که کار کړې

چه پخپله یې فانی بولی رحمانه
ترو بیا څه په هغو چار روا اعتبار کړې

ساقی پورته شه د میو جام تیار کړې ‏ ‏ ‏ ‏ عمر هیڅ معطلی نه کاندې تلوار کړې
هر دم تیغ دا ستا زما په ملګو ګرزی ‏ ‏ ‏ ‏ هر نفس د خپل نفس له تیغ دار کړې
تر خودی په هوره بله بلا نشته ‏ ‏ ‏ ‏ خادی د بیخودانو په دلبار کړې
دا پنځه ورځې ژوندون چه غنیمت دے ‏ ‏ ‏ ‏ شکرانه په دا نعمت د کردګار کړې
که غمخوار غواړې په غم و پراند و کښې ‏ ‏ ‏ ‏ ښیښه د که د شرابو اختیار کړې
خوږ دوه سترګې غریزی په جهان کښې ‏ ‏ ‏ ‏ ننداره په هر ساعت د خپل نګار کړې
هغه څوک دی چه تهمت پرې وایه نشی ‏ ‏ ‏ ‏ غوږ به هیچا باندې مه باسه خپل کار کړې
مدعی چه په خوله درته هغه وائي ‏ ‏ ‏ ‏ ګوش و هوش د مینانو په ګفتار کړې
بې وفا دی دوه دهر یاران واره ‏ ‏ ‏ ‏ چه د پس له مرګه یار شی هغه یار کړې

رحمان وائي د دنیا چارې فانی دی
البته په دا خبرو اعتبار کړې

خو په وران شی د دنیا بازار لتاړ ‏ ‏ ‏ ‏ هر ساعت د بلیتا نه په تاخت لتاړ
لا غنچې په باغ کښې سترګې سپړدی نه دی ‏ ‏ ‏ ‏ باد خزان یې د زړه مینه کړه ویجاړ

هسے باد پرۀ تناله لوری والوت
دلاله تو له ئے پریتله لـه نار

څه بزرګی به یې د بازد و همایۀ وی
زیانی ذکر که سل زنګ کا خـرار

که سل زر کاله پرتیږشی په اوبو کښے
په نرمی به نرمه نشي وچه تمار

تر دا هسے عمر نه عمر بهتر دے
هرچه حال یې زنګدن شي عمردار

ترو له خلاص بندی بنۀ یې اے رحمٰن
چه د یار د زلفو ذیل ډشي په غاره

په پیری کښے چه هوس د میو ناب کړ
بیهوده ګمان په صبح د مهتاب کړ

بے طاعت عنایت له خدائے غواړی
د عتاب ځائے امید ته د ثواب کړ

دانسته ګناه کوی بو بے ادب سی
لکه بت هسے په غټو سترګو خواب کړ

په هغو غوږو چه ذکر د خدائے اوری
بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړ

په هغو شونډو چه حمد و ثنا وائی
هم هغه شونډے بیا ډوبے په شراب کړ

علم وکړی هیڅ عمل ورباندې نه کړی
لکه طفل هسے لوبے په کتاب کړ

په شپه پروت یې د مغان په میخانه کښے
او په ورځی مخ په لورے د محراب کړ

تمام عمر د دنیا په طلب ګرځے
بیا د خدائے په طالبانو ځان حساب کړ

له خالق نه ډې نۀ شرم نۀ حجاب وی
له رحمٰن کوښه وښیی حجاب کړ

چه غرقاب شي تور مژګان په نم د زړۀ
نور خراب شي خان و مان په نم د زړۀ

عبث وائې غم د زړۀ و بلهوس ته
څه پوهیږي هلکان په غم د زړۀ

په بل مخ باندې سیوا د یار له مخه
ما ترلی دی چشمان محکم د زړۀ

چه یې عرش و کرسی لاندې تر قدم دی
بالا تر دی هسے شان قدم د زړۀ

د خلیل تر کعبے دا کعبه ډیره لویه
که آباد که څوک ویران حرم د زړۀ

که نور خلق قدم نه ږدی په زمکه
ما دی ایښی په آسمان قدم د زړۀ

دا مکان دے چه د آسمان زمکې ترمیانه
یو خلوت دے دا مکان مسلّم د زړۀ

زۀ مرهم د زړۀ له چا غواړم بے ربّ
چه کړے نه شي طبیبان مرهم د زړۀ

صورتی همدمان ډیر دی په دنیا کښ
دلے نه مومی رحمٰن همدم د زړۀ

لکه کاڼدی په کوترو نظرباز　　　　هسې زۀ یم د دلبرو نظرباز
زۀ نورڅه وته د راز خبر نۀ کړم　　　　بې هغو چه موي مژګان لري دراز
بل بادشاه لره محال دی ملک د زړو نو　　　　مګر مخ د ځه محمود شي خال ایاز
ستا د زلفی ترسیب پورې رابنکاره دی　　　　نورې زنې د خوبانو لکه پیاز
د تصویر له ګلو طمع د بوی مه کړه　　　　له منقوشو مرغونه خیژي آواز
هغه یار چه په خپل ناز خوش وخرم وی　　　　زۀ هم خوښ یم همیشه د یار په ناز
که څوک آه وفریاد نه کړي په عشق کښې　　　　زۀ په عشق کښې دغه کار لرم غماز
ښادي هر چرې د غم په اندازه وي　　　　هسې غم د دې دنیا وي په انداز
نیتي هسې دهستۍ په دنبال ګرزي　　　　نه ډوبیږي په اوبو کښې تش جهاز
د اتا عدد ده لکه لورهمره ژور وی　　　　یو صورت وي هم نشیب شي هم فراز
همیشه یم لاس نیولې ده داخواست کړم　　　　چه مدام د دیار نیاز وی زمانیاز

چه یکسان ګوري هم شاه وهم ګداته
هسې یار دې د رحمٰن غریب نواز

که بچیانې زرک نۀ کښې آواز　　　　نه صیاد څني خبر وي نه شهباز
سکه له ده خبره هسې معلومیږي　　　　چه خپل صورت ده هر سړي لره غماز
د منصورو حال ته ګوره حال څه شو　　　　خدائې د نائش د هیچا نه کاندي پټ راز
دریغه دریغه که ورستي عقل ورمبې وي　　　　د انجام خبرې نه شي په آغاز
چه فرزند ئې شراب خور او قمار باز شي　　　　نوربي کار نه شي د پلار په خونه ساز
خدائې له هسې زاهو زاده امان وکړه　　　　چه بي دین ئې دیانت شي بي نماز

چه منکر پرې اعتراض کولې نه شي
داد شعر مې رحمٰن که اعجاز

بد اختر به نیک اختر نه شي هرګز　　　　مرغیچه به د ډکو هر نه شي هرګز
که مکان ئې په آسمان وي نزا وشوه　　　　ستاره به شمس و قمر نه شي هرګز
که ئې اصل له یوه زمکې وي څه وشو　　　　بید به سرو صنوبر نه شي هرګز
که همه عمر باران ورباندې ووري　　　　خر به کل پیغمبر نه شي هرګز

له نااهلو دوفا طمع زمه کړه ... ګنده نل به نیشکر نه شي هرګز
که تور غر له خایه خوزي ز به خوزي ... ولې نور به مقدر نه شي هرګز
د رحمٰن په باب چه وشو هغه وشو
مکرر به دا دفتر نه شي هرګز

که خوک فخر کا په ننګ د په ناموس ... دا په عشق کښې نه ارزیږي یو فلوس
که اغوستي یې زري جامې دي ښه شو ... ګنړه یا مرغ زرین دې یا طاؤس
که یې تاج دي په سر ایښی غزا وشوه ... په نظر زما هُد هُد دې یا خروس
که یې فهم فراست وي نه یې عقل ... خالي نقش لکه عکس د معکوس
نه یې مغز نه دانه وي په خرمن کښ ... عبث هسې خالي لوني په سر بوس
د مجاز له یاره طمع د خیر مه کړه ... تمامي شر و شدت دې دا الوس
و دانۍ یې همه واړه ویراني ده ... راشه وګوره ماړۍ د دې تیانوس
که زما په ګفتګو کښې زیات وکم وي ... خوک دې ګله کا په دا بنهر کښې جاسوس
ساقي جام د باده را وړه چه بیخود شم ... خدایې خوک مکړه په خودي کښې محبوس
که خوک د غواړي تمامه دنیا واړه ... زما یار غوندې به نه وي بل عروس
رحمٰن حسن د یار وینم په پرده کښې
نه پټیږي نور د شمع په فانوس

ای زما د زړه آرامه راشه راشه ... سرو قد ګل اندامه راشه راشه
چه همه واړه خوبان د مقتدیان دي ... د همه واړه امامه راشه راشه
بې تاننته هیڅ حرمت د عاشقانو ... د مشتاقو احترامه راشه راشه
خدای زده بیا به هسې وقت دي او که نه وي ... زه دې ویریږم له ایامه راشه راشه
ته هنګام دې که وفا کړې که جفا کړې ... چاره نه شي بې هنګامه راشه راشه
دا جهان د مسافر دیو رباط دې ... ته له دې ته دې له دې کرامه راشه راشه
پري رویه سنبل مویه مشک خویه ... عنبر بویه لاله فامه راشه راشه
شپه لا پریږده رڼا د رخ را پاندې شپه شوه
د رحمٰن ماه تمامه راشه راشه

بیا م زړه د تورو زلفو مسخر شی — چپ و راست د حبشو تور لښکر شی
هر طرف مې د دعا غشي ګذار کړل — دلې یو هم هسې نه دچه کارګر شی
وهر لوري نه چه غوږ باسم غوغا ده — یا نارې د بېلتانه دي یا محشر شی
واعظان خو وعظ کانډ باري څه کا — چه د عشق په لیونو ئې ګذر شی
چه پند غوندې ماته نصیحت کړ — په دیدن د ستا هغه زما پسر شی
ستا په در کښې چه پراته دي نیکبختان دي — چه د استاله دره ووت دربدر شی

دعشق زخم به څوک څه ګنړي رحمانه
چه ګنړون ئې په پرهر باندې پرهر شی

په دوران مې هسې رنګ دلبر پیدا شی — ګویا بل د نمر د پاسه نمر پیدا شی
یا طالع د زماني یا زما بخت دے — چه داهسې رنګ شیرین بشر پیدا شی
چه قاصد د ورک یوسف زیرے پر د کړه — د یعقوب د نظر بیا نظر پیدا شی
عشق دے داکه یو نساد دے نه پوهیږم — چه جهان کښې چه دا شور وشر پیدا شی
دریغ نخل د عشق مه وی زرغون شوي — چه له ښاخ ئې د غم ثمر پیدا شی
ملائک د عشق له غمه خبر نه دي — خو هم ما لره دا سخت سفر پیدا شی
یو د ترکو ئې نیازي بل عاشقي شوه — په پرهر باندې مې بل پرهر پیدا شی
بیا به روغ د عاشقۍ له رنځه نه شی — په هر تن کښې چه د غه اثر پیدا شی
دنا اهلو زدې پلار به څه ښادی کا — چه له پښت ئې لئیم پسر پیدا شی

چه هنر غیب کوي غیب هنر کا
د رحمان په دور دا هنر پیدا شی

هیڅ مې نه زده ده پوهیږم دا غم پیر شی — چه دلدار مې د اغیار په شکل خیر شی
زمانه مې د رقیب له لاسه وژنی — چه مې سپي کانړه هغه راباندې شیر شی
د هجران غمونو هسې په عذاب کړم — هغه غیب چه مې لږ کانړه اوس ډیر شی
چه په تیغ مې لوبې کړې سزا مې دا ده — نه چه غوڅ مې زړه د ترکو په شمشیر شی
تیر ساعت به دې بیا په لاس کښې نه ورزی — اوس به څه وایم چاته چه تیر شی
چه مې نوش د هجران پیاله کړه تلخه — د وصال دولت مې کل زهر د کنډو یر شی

چه یې نه په وفا یاد نه په جفا دي
سکه رحمان د هغه یار له دل هیر ش

چه نصیب یې سینه چاکه زړه انګار ش
جرس څکه په فریاد وپه چغار ش

چه نداده عاشقئ په عاشق وشوه
د غفلت له خوبه پاسیده بیدار ش

عبادت د ریا کار څه پکار نه دے
لکه غوک هسے په بحر کښے مردار ش

د جاهل زهد په زهد حساب نه دے
لکه مال په خمرو خرځ د خمرخوار ش

مشقت د نادانانو واړه پوچ دے
لکه بے باران ابر تش غبار ش

علمیت د بې عملو عالمانو
لکه ګنج د کتابونو په خربار ش

چه نے کاندي وناهلو ناقابل ته
نصیحت د ناصحانو څه په کار ش

د رحمن کلام په غوږ د بے هنرو
لکه دُر په لاس د طفل هسے خوار ش

کوره څه بلند مقام دے د اخلاص
چه جهان واړه غلام دے د اخلاص

که له زمکی و آسمان ته خاته ګران دي
د اسفر په یوه ګام دے د اخلاص

چه خبر کړه مخلصان له علم غیب
دا هغه واړه الهام دے د اخلاص

د رواج و رسم عمر مدام نه دي
لکه عمر چه مدام دے د اخلاص

بے اخلاص خلاوت د اسلام نشته
که اسلام دے خو اسلام دے د اخلاص

څه عجب دے که مستان وي تر چاپیره
هر ساقي څخه چه جام دے د اخلاص

څه عجب دے که هماے په دام نښلي
هر صیاد څخه چه دام دے د اخلاص

پس له مرګه به دا مهر و اخلاص نه وي
که اخلاص وي نن هنګام دے د اخلاص

د رحمن کلام په دا سبب شیرین دے
چه نے هر کلام کلام دے د اخلاص

که ته نه کړے په بل چا باندې غرض
بل به نه کاندي په تا باندے غرض

که ګدا د بل په غولي غرض نه کړي
سپي به نه کړي په ګدا باندے غرض

په ساحل کښتئ د هیچا نه ډوبیږي
که خوک نه کا په دریا باندے غرض

خلوتیان په خپل خلوت کښے فراغت دي
د رسوا دي په رسوا باندے غرض

دادنیا په احمقانو ده ودانه
دانا نه کا په دنیا باندې غرض

زه رحمٰن د عشق په درد کښې هسې خوښ یم
چه مې نشته په دوا باندې غرض

طمع مکړه په دنیا کښې د نشاط
بیا به نه مومې نشاط په دا بساط

لکه راغلي بیا به هسې ځنې درومي
دا جهان د رهروانو دے رباط

ترهر کام لاندې کومې دے ددے دهر
اېښي بویه هر قدم په احتیاط

ودانا د ته په دا جهان سبکا ریږي
هم جنت د هم دوزخ د هم صراط

په عاشق به هیڅ دهشت د رقیب نه وه
که ئې نه کړے له خوبانو اختلاط

له کم ذاتې بې دیانتې بې نمازه
طمع مه کړه د نیکئ د یو قیراط

غم د ترکو تر رحمٰن هسې چاپیر شه
لکه وسکڼې جامه په چا خیاط

ارمه کله دې پاخه وائي واعظ
هرچه وائي واړه نه وائي واعظ

دے چه ماله خپله یاره لرے بیا سي
نور به څه راته اومه وائي واعظ

جار واته زماله یاره ډیر مشکل دي
زیاتي څه له دوباره وائي واعظ

په خوږ وپستو خبرو ئې غلط شوے
دا خوږه خواږه تراخه وائي واعظ

زه بې عشقه بل یو کار کولے نه شم
ډیر له عشقه تښتیده وائي واعظ

اعتبار ئې په نرمئ په ګرمئ مه کړه
دا توده توده ساړه وائي واعظ

او وعید دکې بې رحمان دوئیل نه یم
بهتر دا دي چه نور نه وائي واعظ

په تندي چه مدام بل کړه آتش شمع
ځکه بیا مونده له هغو آرام شمع

په انوار منور اهل ابصار شو
لا به کله شي بنکاره دا انعام شمع

پتنګان ئې لور په لور ترمخ غرغیږي
ځکه نه کوي په سول کښ آرام شمع

وسیزه ته زان زما په شغله باندې
کړه پتنګ ته په رموز کښې کلام شمع

ستا مجلس د خاص الخاصو سرفراز و
د رحمان په شېر نه مومي هر عام شمع

هر یو گل ږ ستا د باغ روښن ترمے ترچراغ    روښن ترمه ترچراغ هر یو گل د ستا د باغ

ستا باغ د بنړو زاغ په نظر زما هماۓ شي    په نظر زما هماے دی ستا باغ دَ بنړو زاغ

د دردمند وپه دماغ ستا د رخاورے عنبر دی    ستا دَ رخاورے عنبر دی د دردمند وپه دماغ

د عاشق دَ تهمه داغ په آسمان دَ عشق آفتاب دے    په آسمان د عشق آفتاب دی د عاشق دَ تهمه داغ

د رحمن دَ زړهٔ فراغ نه شي نه شي بے خوبانو

نه شي نه شي بے خوبانو د رحمان دَ زړهٔ فراغ

اورنگزیب و شاه جهان غوندي اشراف    صد ته شه ترمنصور غوندي منداف

که ږتن په لوۓ لوۓ دے ته بېنۓ شه کړے    مه کړه خداۓ چه کوه طور شي کوه قاف

بل هوس د عاشقۍ ته هوس نه کړه    د دروغ دی چه زر دوز شي بوریا باف

د مکے په بزرګۍ کښے هیڅ شک نشته    ولے خر به حاجي نه شي په طواف

که په سل دریاب غسل دَ ګمان د کا    ګمان مکړه چه به سپے شي پاک و صاف

کشتۍ هم چه ډیره وکه شي د وبیږی    د مسرف په ګمان بلا شه خپل اسراف

صابرانو صبر په بیبو حریصان مشغول    نه شه عدل شته په چا کښے نه انصاف

دا خلور واړه مذهب سره یو دي    ما و تا پکښے پیدا کړه اختلاف

د همه واړه ملکو نو ښتن خداۓ دے    که دوزخ دے که جنت دے که اعراف

شهیدان نه دی همه خون فروشان دی    چه خونی نه خون بهانه کا معاف

د کاذب ژبه په خوله کښے وچه ښه ده    نکه تورد د لوکی وی په غلاف

د دیوال په سر به څو زغلی ترکومه    د دروغژن چه د دروغو وهی لاف

آب وتاب د ناکوه مهروی همره    څو نظر په ے څوک نه وی دَ صراف

دَ دُ نیا په دولت نازمه کړنه رحمن    دا یو موی دے په نظر دَ مرشکاف

مدح د مجرد حبیب ود رقیب کرم

رحمان نه زده بله مجوه نورا وصاف

چه پا ئے بند شه دَ لیلی په اشتیاق    مجنون وا چوه و نورو ته طلاق

چه د می و د طرب په خوند خبر شه    فرامرش کړه صوفی نقل دا شراق

جام دَ میو دے یا رقص دَ خوبانو    په هر ځاۓ چه وي ملا جمع شي عشاق

په نیمه نظر نه کانږې نقده — که څوک خورے ورته تایې یا براق

چه حاصله د دلبر یکا نګی شی — د دوبي خبرے نه کانږې مشتاق

حرکت له ځایه نه کا لکه شمع — که یې اور په سر بلیږي په تاراق

خوښ وی هسے د خپل یار په دردو غم کښ — ته به وائے چه بادشاه دے د آفاق

هسے محو وی د عشق په مې ناب کښے — چه خبر نه وی په وصل په فراق

که ظاهر په صورت وی په معنیٰ نه وی — لکه شکل د لا لفظ وی په اوراق

غوټے تن په کاروزار کښے لښا نه شی — نه چارباسی مخ آسونه د عراق

د عراق آسونه کار په اشارت که — په وهل په کوتل کاروی دا یلاق

چه خدائي پوه کړل د بڼږو په ښبنل پوښو — چه پوهه نه خونه پوهیږي په شلاق

که ئې مرغوټ که ئے مال ځي خدائے دې نه کا — د طالب د د مطلوب ترمنځ نفاق

د قسمت پارچي په لاس بیولے ناست یم — نه پوهیږم چه به جفت وی که به طاق

ته چه بند وائے ناصح د رحمٰن ته
کاشکي نور کړي هغه کښلي د میثاق

ته ناحق په ما کینه کړے کینه ناک — په کینه به آئینه نه کړے ته پاک

څوک بے وجهے چا نه توره تیره اخلی — خپل عمل دے چه دنیا ئے کړه هلاک

چه خندائي د بلبل په آه سرد کړه — خدائے د ګل ګریوان پاره کړه سینه چاک

خکه چپیے شوے اول د حباب سترګے — چه له بعض په دریاب کښ چوی تړاک

که تن زمکه کړی ذرهٔ تخم باران اوښکے — لکه نخل به سرو کازی له خاک

بالادست به شی هاله په نور د ښو — که تعلیم د زیردستۍ واخلی له تاک

بیا به نه مومی د ترکو واک د حکم — څو نه وزی د درست جهان له واک

د هغه جهان ژوندون به هاله مومی — چه لاس وکاګی د دے جهان له ژواک

ته چه ژغوری سرومل په عاشقۍ کښ — عاشقي داهسے چرے ده کا واک

چه دا هسے لوئے میلمه ته کور ته بیائے — اول غولی پاکیزه کړه له خاشاک

په دی کښے به ورننه شی تر توحیده — څو نه نیږه د خالی نه شی اشراک

داهم ډاره حجاب دے چه لیده شی — نور د حسن بالا ترمے له ادراک

په ظاهر لباس غلط ده سړي مه شه    منځ یې ګوره له چغزي او له متاکَ
اولیاء په جهان ګڼه څرګند نه دي    چه پاک زوئ خیبر نغاري له ناپاکَ

هیڅ دنیا یې له ځپها سره ونه کړه
ترو رحمن به څه مانه کړي له افلاکَ

که په کنج د شاهي فخر شهریارکَ    عاشقان ئے د دلبرو په رخسارکَ
خرقه پوشو په خرقه کښې دي موندلی    هغه خط چه دنیا کښې دنیا دارکَ
پتنګانو لره خدائے ورکړه په اور کښې    هغه عیش چه ئے بلبلي په ګلزارکَ
نیک ساعت په بد بدل د هیچا مه شه    په وصال کښې غم د هجر درد و ښارکَ
نن د ګورو د موریو دے په معنیٰ کښې    خوبه چائے تورلحد په چا بازارکَ
د بیړۍ په دو بید وچه رب راضي شي    بیا ملاح د زړونو که هلته کارکَ
هغه مخ چه مادر زاده ښایسته نه وي    مشقت د مشاطې واړه مردارکَ
یار د ناز له خوبه پاسي په سے کړځي    چه نکک د عاشقانو بخت بیدارکَ
نیمے شپے یے یار تر سره پورے کښېني    لکه شمع چه څوک بله په مزارکَ
د مستئ د هوښیارئ یون څرګند وي    په هر چا کښې چه څه وي هسے رفتارکَ
د بلبلو نغمه زاغ کولے نه شي    هر سرود آواز په طور دخپل کارکَ

رحمن هسے بیوتوف سوداګر نه دے
چه د دین متاع بدله په دینارکَ

ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه کَ    چه قضا شي وردو ښار حکما څه کَ
مور د پلار خو نیک فرزند له خدائ غواړي    چه بد بخت شي ادے څه کَ بابا څه کَ
یار له یاره په لوئے لاس که سیلیږي    چه لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه کَ
په خیرو په دعا نه شي کړدني خدائے دے    چه خدائے نه کا ښیرے څه کا دعا څه کَ
بخت په زر و په زور نه دي چا خپل کړے    په دا کار کښې ناتوان څه کا توانا څه کَ

اے رحمانه پتنګ عذر شو پرے او سو
نور د شمع خندا څه کَ ژړا څه کَ

هغه زوئ چه مئین وي څه به خوب کَ    چه فرهاد غرندي کو هکن وي څه به خوب کَ

هر نفر د دېرې تله دی له جهانه　　　چه ئې هر نفس رفتن دی څه به خوب کې
چه صبا له چنل یاره جدا کېږې　　　که د سلو شپو کرمن دې څه به خوب کې
عاشق ده خدائے له اوره پیدا کړې　　　چه په اور کښې ئې وطن دی څه به خوب کې
د رقیب له جوره خوب د عاشق نه شی　　　د هغو چه یار دشمن وی څه به خوب کې
خوب خندا په بېغمئ کېږی رحمٰن
هر چه تا غوندې غمژن وی څه به خوب کې

چه په سترګو کښې ئې خار وی څه به خوب کې　　　چه په زړه ئې غم د یار وی څه به خوب کې
خوب له یاره بېره هم د عاشق نه شي　　　چه ئې یار په بل دیار وی څه به خوب کې
په دنیا کښې خوب هغه کا چه نادان وي　　　هغه زړه چه هوښیار وی څه به خوب کې
کوم طالب مطلوب موندلے دے په خوب کښې　　　هغه خوک چه طلبګار وی څه به خوب کې
دیدار نه دے چا په پټو سترګو کړے　　　چه مطلب د چا دیدار وی څه به خوب کې
بله لار د مرګ له لارے ګرانه نشته　　　چه په خوب ئې هسے لار وی څه به خوب کې
هر نګاه د دلبرانو ذوالفقار دے　　　هر چه غرق په ذوالفقار وی څه به خوب کې
زه رحمٰن د یار بندهٔ وخت منتظار یم
چه بنده د وخت منتظار وی څه به خوب کا

هغه خوي چه بے خدایه محبت کې　　　هغه کې داره بېځایه محبت کې
محبت بے خدایه داره د زړه داره زخم دے　　　که مدام له چنګ ونا به محبت کې
خونخواری ده چه یې یو له بل کاندې　　　هر خودرائې چه له خودرائې محبت کې
نېنجه‌ئې ریش کند و جامه پاره وی　　　آدمزاد چه له چارپائی محبت کې
هغه سرائې له به تله وربانده ګرازوی　　　هر سرے چه له دے سرایه محبت کې
بلهوس به نه پتنګ و پروانه شی　　　د مګس په شیر له ورایه محبت کې
چه د تورو زلفو سوے په چا ژوند شی　　　هغه کله له همائې محبت کې
رحمٰن څکه دریا رمتابعت کې
چه رهرو له رهنمائې محبت کې

د همدرد و همدردی به دې بې درد کې　　　د نا مرد و همدمی به دې نامرد کې

صحبت بے تاثیره نه دے دا مثل دے     کنکو نه ري هم په خیره د کنکو زر د ک
هر کالي چه خوک په زمکه باندې کیږي دي     هغه زمکه ئې له جنډه خپل کړد ک
په محلس د ویر ژړلیو خوک درمه شه     که صحیح که سلامت وي آه سرد ک

چه دوئ له میان لرے شي رحمانه
معشوقه عاشق چنچله باز پرور ک

زړه م تراشي د سترو په تیره نوک     ما توي م درویش غابن وار د په سوک
په غمزو د تورو سترګو یم وژلے     ژوبل ژوبل پروکي پروکي یم تهوک تهوک
که نارے وهم که خاورے په سر ښندلم     ناروا شه که پروا لري یو څوک
لکه ګل چه خوک د طفل په لاس ورکه     هسے رنګ د زما زړه کړ وشوک په شوک
د آسمان په نیلي سور لکه آفتاب شي     د زر نغښتو دستار کیږي دي په سر هوک
کمله ډیره دي دو غم م زړه وڅوي     ورته هیڅ دي زما درد د زما دوک
درست جهان ئې په غم ډوب کړ و سرتر پایه     که ګدا دے دد دے دهر کړه ملوک
که انصاف لري په زړه کښے منصفانو     راشئ ګورئ د دلبرو دا سلوک
زړه بروله د خپل ښنا نه دا شیم     چه سحر سحر زاري وهي تل غوک

چه مئین د دلبرانو په جمل شوے
اے رحمانه ځان وژاره کوک په کوک

په ښائیت زما د یار نه دي خبر خوک     که خبر شي پرے به نه ږدي دغه در خوک
د دنیا چارے همه واړه فاني دي     برنا حق خاورے نولي په خپل سر خوک
چه قبول شي په درګاه د مهرویانو     دغه په خیر به نه وي بختور خوک
که زما د یار په مخ د ځا نظر شي     و به نه کاندي بل خوا ته نظر خوک
د دیدن طاقت ئې هیڅا ځخه نشته     د آفتاب ته کتي نه شي برابر خوک
که هر څو دلبران ډیر دي په جهان کښ     بل به نه وي زما یار غوندې دلبر خوک
عاشقي یوه بلا یه ده عجب شه     دغه کار کولي نه شي هم هر هر خوک
له هجران بله سخته بلا نشته     خدا ئے د له کاندي زخمي په دا نشتر خوک
مخ به بل خوا ته هرګز و نه جار باسي     چه شي ستا په خمار سترګو استر خوک

دبه نهٔ رسېږی تا ته نېه آسانه ستا په غم چه خاورے نهٔ کاندِ په سر ښوک
ارمانونه به کوی زار زار ربه ژاړی چه حاصله کونهٔ نهٔ کا په ښش در ښوک
همره نوم دَ عاشقیٔ وربانډِ مه بږده چه دیار په غم کښے نهٔ شی قلندر ښوک
هغه نهٔ کانډِ نظر و سیم زر سته چه په لور دَ خپل آشنا کانډِ نظر ښوک
په ګلونو دَ ګلزار ربه میل نهٔ کانډِ چه خوبونه کا دیار په خاکستر ښوک
بے رهبره یون دَ عشق په لاره ګران دی دلته بویه چه پیدا کانډِ رهبر ښوک

چه بیلتون په سترګو وینی آشنائی کا
د رحمٰن په خبر به نهٔ وی بے هنر ښوک

چه مشغول نهٔ وی د ترکو په جمال ښوک نور به څه کا په دنیاکښ اشتغال ښوک
چه یئے قیل و قال له یاره سره نهٔ وی له نور چا سره به نهٔ کا قیل و قال ښوک
د بل خط په عبارت به نظر نهٔ کا چه نظر و کانډِ ستا په خط و خال ښوک
چه په اصل کښے خدائے نهٔ وی پیدا کړے تر و به څه غواړی دا ستا دَ مخ مثال ښوک
نور خوبان دی ستا تر مخ پورے هسے لکه بل کا د آفتاب په مخ مشال ښوک
چه عنقا شو اهل دل په دا دُنیا کښے تر و به څه روائی چا وته احوال ښوک
که عاشق په هیڅ کښے ژاړی هیڅ ګرم نهٔ دے په دا هسے درد کښے نهٔ لری مجال ښوک
سرخروئی دَ هر سړی په جګر خون ده نه هغه چه په سرو اچوی سور شال ښوک
مخ رونړی دی د عاشق په خپلو اوښکو په دا نهٔ شی چه یئے مږی په رومال ښوک
سړی بویه چه په نیک عمل نازېږی نسچه ناز کا دَ دنیا په ملک و مال ښوک
د دنیا چارے ناف دی مرد هغه دے چه نظر کا په حرام و په حلال ښوک
هر چه کر کا دا وربشو غنم غواړی له خاطره یِ بیرون کا دغه خیال ښوک

چه یئے شعر د رحمٰن مهند تر غوږ شی
غوږ به نهٔ باسی په شعر دَ خوشحال ښوک

چه علاج کولے نهٔ شی دَ قسمت ښوک تر و به څه وائی و چا ته نصیحت ښوک
ګم د چا په ځان پیر زور دی باری څهٔ کا چه دَ خدائے په کړه کښے نهٔ لری قدرت ښوک
هغه چارے چه موقوفی په تقدیر دی کړے یئے نهٔ شی په محنت په مشقت ښوک

که نظر کا وقضا دهم رضا ته — په هیچا باندې د نهٔ کا ملامت څوک
د مطلوب جفا وفا واړه هنر دے — څه پوهیږي د حکما وُ په حکمت څوک
د ابلیس و ریاضت ته دې نظر کړه — چه غرور کا په طاعت په ریاضت څوک
علت لاړ شي عادت نهٔ ځي له سري نه — خدائے دې نه کا ندې په بد چارے عادت څوک

زهٔ رحمٰن د بیلتانهٔ سیلاب یم وړے
که لاس را کاندي د خدائے په محبت څوک

هسے نه چه زما یار واړه جفا کړ — صد چندان لکه جفا همره وفا کړ
لکه زهٔ چه په خپل یار باندې مئین یم — یو په سلو همره مینه یار په ما کړ
زړهٔ ئے ړوړے په احسان وے نه په جور — مجنون څکه په لیلیٰ پسے ژړا کړ
درست جهان د خوبرویانو ناز بردار دے — نه یوانے دغه ناز په ما و تا کړ

نه به کوري رحمٰن بنکلي هغه مخ ته!
فرښتې چه یې د حسن تماشا کړ!

زغره واغونده ملا وتړه په جنګ — دغه پس معرکه کوه د ننګ
د بې ننګ و ته د ننګ خبرے مه کړه — یا ځان وګڼره په خپلو وینو رنګ
ننګیالي چه یو ځل مخ کا په یو لوري — نور هیڅ نه ریږي کوهي وي که کړنګ
هیڅ له ځانه له جهانه خبر نهٔ وي — چه چراغ په نظر کیوزي د پتنګ
د بلبلو وچمن و ته پرواز وي — سمندر کا مدام اور و ته آهنګ
که جهان و بے هنر و ته فراخ وي — یو لحد دے هنرمند و لره تنګ
هغه بنهر جوهري لره زندان وي — چه یکسان وي پکښے لعل و مردار سنګ
آسمان زمکه د واړه ژا ړمې د نهنګ دي — څه به زیست که څوک په خوله کښ د نهنګ
په بناسئے هیڅ بنادمه شه که دانا ئې — غم بنادي دي دوه دے هر څنګ په څنګ

که رحمٰن د هغو تللیو وصال غواړي
تیر به نه که په دا دوړ کښے یو درنګ

۱ ینې م په سر دي ستا د مخ د مینے ګل — بیا م تور لیمه دي ستا د زلفو په سنبل
تنچه آئینه په لاس کښے داخلي حیرانیږے — زهٔ له کومه راوړم صبوري او تحمل

ګوزي په چمن کښې مشکل دي که وري د ګلو
خدائے زده چه ګلونه وري که زړونه په منګل

هم مشک لیدلي هم عنبر دي په جهان کښې
شاباش شاباش ستا په زلفو په کاکل

نه به ستا د مخ په څېر ګلشن وي چا لیدلے
نه به دي ژړا په څېر آهونه د بلبل

هسې تغافل که ستا په جور و په جفا کښې ؛
خلق حیرانیږي د رحمن په تغافل

هیڅ مې نه کړه په دا عمر کښې حاصل
هسې پلتې شوم مردود و ناقابل

مالا بوئ هم د وصال مونده لے نه دے
تش په توره م خدائے نوم کړلو واصل

هسې ډوب یم د ګناه په دریابو نو
چه په سترګو مې ګو نه لیده ساحل

له وطنه یم په هر زمان وباسي
رقیبان مې راپسې کړه محاصل

که بلا ده که جفا ده که وفا ده
دا همه واړه په ما کړه خدائے نازل

د دنیا په پلیتئ مې ځان پلیت کړه
حیف مه دا چه نه عالم شوم نه جاهل

توره بږیره مې شوه سپینه زه حیران یم
چه رحمن لا بالغ نه شوم نه عاقل

مه غوږ باسه د نا اهلو قیل و قال
پکار نه دي قیل و قال د بد سګال

یا به فخر په خپل اصل په نسب کا
یا به ذکر کا د مال و د منال

یا به هسې پوچ ټوکي کاندې آغازه
چه مضمون ئې نه مردار دی نه حلال

ره انا و د نادان صحبت دے هسې
لکه ګډ شي وبله لال او کوتي لال

لکه لال و کوتي لال چه سره ګډ شي
یا صحبت شي د عیسیٰ او د دجال

هغه غم چه تیریږي بے له جنسه
تر و به څه دي د هغه غم احوال

د دنیا چاره ناقي دي مرد هغه دے
چه خبر شي په ثواب او په وبال

اب وسیند لا څه محال لري په تله کښے
د دنیا د چارو هیڅ نه وي محال

د دنیا چارے په شان جواب وخیال دي
څوک به څه کا اعتماد په خواب وخیال

لکه مال و ملک په خوب کښې ورڅرګند شي
خو چه ویښ شي نه ئې ملک وي نه ئې مال

لکه زګ چه د اربو په سر لیده شي
کمبئې دا غښے هیڅ ورنه شي په چنګال

لکه دود چه غرو نه څرګند یږي
تا رپیډ تار شي په نري یوه شمال

لکه یخ چه د سرو په زور شي حبع — هیڅوک یې نه وي د آفتاب په مخ مجال
په یوه ساعت ئې ساز بیلئه ویران کا — خاورې خښتې دي په لاس کښې د کلال
د مجاز په معشوقو کښې وفا نشته — ما هزار ځله وکښلې دي دا فال
اعتماد یې په بنادې د په غم مه کړه — نه ئې هجر په قراري نه ئې وصال
ګاه ئې تور کو دي په مخ باندې راکیښ شي — ګاه لې راکیښ شي په مخ باندې رویبال
لکه مالګه چه څوک کېږدي په اوبو کښې — زه هم هسې سرزده یم په مثال
چه د مرګ و تاخت و باخت ته نظر کړم — صورت ویم د میږي په شیر پا مال
که وصال یم د یار بیا مونده هلسیال یم
ګنړه نه یم زه رحمٰن د هیچا سیال

ژوبل ژوبل د خوبانو په نګاه یم — را ترد اچه زیات غوښېږم چه پناه یم
چه یوسف غوندې هزار پکښې پراته دي — بندي یوانه د هغه سیب ذقن په چاه یم
چه ئې قد و قامت ګورم په سترګو — عندلیب په بیا هم سرو وخپل آوه یم
د سپین مخ د تور وخښنو له رغبت — منت بار د هر سپید د هر دیاه یم
د رقیب خبرې ورم د یار د پاره — دعاګوه هم د نیک خواه هم د بد خواه یم
بناخ د زلفو ئې چپله خدائے راهیتو کړ — ګنړه زه د یار ترقد پورې کوتاه یم
بې له عشق که م غیب که م هنر ده — نه خبر په عبادت نه په ګناه یم
ځانځرګوره نا ګاه راخر ګند یږي — له هغې ورځې دا هسې چه آګاه یم
بې صبرئ د یار په وصل کښ مجبور کړم — د پسرلي په مرغزار کښ وچ ګیاه یم
له ورله بهتر ورهم بیا آه کړم — په نارو نارو خروس د صبحګاه یم
په جذ بو جذ بوئے راکښوم و ځان ته — هغه یار م کاهربا دي زه ئې کاه یم
لکه باد دو نی پوخ شي ځو رژي — زه هم هسې بار تر لې سربراه یم
اوس م ځائې په دا جهان کښې پاتې نه شه — خوزید لے تر چهل وتر پنجاه یم
د رقیب علاج آسان ده بلا دا شوه
زه رحمٰن له خپله یاره ناویاه یم

که م څوک په فقیرئ شمیري فقیر یم — که م څوک په امیرئ شمیري امیر یم

د دلبر د صدق لره یې غوا رم
هسې نه چې په دنیا پسې زهیر یم

د خرق خدمت مشکل دی او که نه وي
زه هر دم و دغه چارې وته خیر یم

هم پند اخلم هم پند دایم هر چا ته
زه د ځینو یم مرید او د ځینو پیر یم

په هجران کښې خیال د یار راسره مل دی
په زندان کښې د یوسف سره اسیر یم

په خندا کښې مې ژړا ده لکه شمع
له عالمه پټ پنهم د ځان په وير یم

آزادي تر دا په هورته بله نشته
چه بندي د یار د زلفو په زنځیر یم

چه همیش په غوږ نارې د هجران آورم
رحمن ځکه د خپل یار د وږ ته ځیر یم

خوشحالا دوو لتا م غلامان دی
زه رحمن په پښتو ژبه عالمګیر یم

زه یو دم د ستا له غمه بې غم نه یم
بې غم ستا له ذکر فکر یو دم نه یم

هر زیارت لره چه ځم مراد م ته یې
زه زایر د بت خانې د حرم نه یم

ستا د در په تورو خاورو باندې خوښ یم
بې تا خوښ په تماشا د ارم نه یم

چه د ستا په تماشا یم خمر شوی
نور خبر په تماشا د عالم نه یم

بې د ستا له زیبا مخ د بل مخ ته
منتظر د بوی د تنې تر سم نه یم

که د استاد بنګلی مخ عاشقان ډیر دی
زه په و ... کښې اول یم د ... نه یم

که له غمه د ونډه مرم حال وایه
چه یا دیو یم یا دو ب یم آدم نه یم

زړه مې ستا په غمزه غوڅ دی غزا وشوه
که په زلف و په پښو روغ یم ګرم نه یم

سم قامت لکه الف یم په راستۍ کښې
لکه غښې زه فساد لره سم نه یم

خم د زلفو یم محراب د کږو ورځو
زه د مار د لړم په څیر خم نه یم

کم و بیش که یم له لاس د اتعریږي
یم سرې شکم لره بې شکم نه یم

زه رحمن د بېلتانه له غمه ژارم
واقعه د ډېره ګرانه هیڅ کرم نه یم

زه داسې دیوانه د مجنون چا کړم
له رواج له رسومه بیرون چا کړم

نه پوهیږم چه دا چارې په ما څوک کا
لیونی د خپل نګاه په افسون چا کړم

کو مې ستر ګې کوم با نره کومه غمزه ده
د وب شهید خونړي په خاک په خون چا کړم

توان توفیق خود فتنو راغله نه دي — په فتنو د تورو سترګو مفتون چا کړم

رحمن هیڅ له حنبل ځان خبر نه یم
چه دا هسې زنګ زبون و محزون چا کړم

زه له دې دنیا نه تلو ضپه شتاب یم — لکه پا نره د خزان پښه په رکاب یم
که هزار آبادي کړم په جهان کښې — غرض دا چه نهایت خانه خراب یم
که م اصل د حیا تو له اوبو دې — بیا خو دا چه د اوبو په سر حباب یم
دا جهان قصاب خانه کړه خدائے وما ته — پابسته ولاړ په غوږلي د قصاب یم
چه د خدائے له معرفت خبر نه شم — معلومیږي چه یا دیو یا پري یا دواب یم
که صورت م د سړي دے زه نه خبر کړم — په معنی کښې د چارپایو په حساب یم
لکه بت چه په دنړو سترګو اوده وي — هسې زه په بیدارۍ کښې ورته خواب یم
په طاعت په عبادت م زړه یخ نه کړه — همیشه د معصیت په اور کباب یم
سر د خدائے و عبادت ته ایښے نه شم — مدام ډوب د ګناهونو په دریاب یم
چه و خپلو ګناهو لو ته نظر کړم — سزاوار د هر عذاب د هر عتاب یم
لکه څوک چه په خره سورودي مخ یې تور وي — زه هم هسې ترغښتن پورې بے آب یم

غزا د شوه که ګمنتا دکوم په ژبه
زه رحمن چه کړه ارنه ګرم کذاب یم

په یوه غمزه د سترګو دې فنا شوم — سر تر پایه بے بنیاده بے بقا شوم
ما د یار له غمه دم وهلی نه دے — که م دم وهلی نه دے هم رسوا شوم
بنه چه نن م تري تومند شوه په عشق کښې — ها له څاڅکي د شبنم اوس دریا شوم
زه د یار و مخ ته ګورم یار و ما ته — چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم
په هجران کښې که ګدا ورم کند په غاړه — په وصال کښې بادشاه د امرا شوم

بادشاهي د ګدایانو په دعا شي
زه رحمن څکه بادشاه یم چه ګدا شوم

تر هغه حده په هر رته بد سرے شوم — چه د درست جهان په سترګو کښې اغزے شوم
دنیا دا په څښله زیت و روزګار کا سرے — خو یو زه په دغه بار کښې کوږ لړګے شوم

تمامي جهان لمن راځنه نغاړي ؛
سپین دېر دکي م اغوستي تور کومه شوم

هیڅ حاجت د هنر نشته د نصیب ته
غنا وشوه که هسندیا داوزه شوم

د نوح زده م د نیک نیکه نسی دو
گنزه زه هم د یو نیک نیکه نسبه شوم

کل دسواس له احتیاط پیدا کیږي
زه له ډیره هوښیارئ ندلیونے شوم

ادس عطا دا آدمیت را پاندي وشوه !
چه رحمن د هغه یار د کوڅي سپي شوم

د هجران له ډیره غم وي نه مرم
له دے هسے رنګ ماتم وي نه مرم

چه یو یار له بلَ یاره جدا کیږي
د دے دهر له ستم وي نه مرم

چه په هر سحر زما په ژړا خاندي
له دے هسے صبحدم وي نه مرم

یار چه یار په ستر کو نه ویني خو مرګ دے
تر روزه به له خپل صنم وي نه مرم

چه په لږه ګرمئ شا کاندي و ګل ته
له دے بے وفا خښم وي نه مرم

چه د مرګ خوارے په خوا ګړے رحمانه
لا پخوا تر دغه دم وي نه مرم ؟

اعتماد به په دنیا کوے تر کومه ؟
دار نتار به پس شا کوے تر کومه

خو به پټ له مرګه ګرزے سپینه ګیره
په رو بنیانه د رخ به غلا کوے تر کومه

چه د دهر له یارانو وفا غواړے
صیادي به د عنقا کوے تر کومه

د پیرئ علاج په رانګ په لور نه شي
دغه کار به په عصا کوے تر کومه

ته چه پند ولے ناصح و رحمن ته
شکایت به د قضا کوے تر کومه

که م دنیا نځي ساقي په یو جام
تر دا هورته به نور څه وي احترام

بنه دے مالوه دا فیض د شرابو
چه پرېږدو نیغم د دلق ازرق جام

مے خواري که په عالم کښ بد نامي ده
ما تر پښو دے لاندي کړے ننګ و نام

په میزان کښ یو سر لعل بل سر کا نړي
مساوي په عاشقئ په خاص و عام

عاشقان د سپین رخسار د تورو زلفو
څه پرواه لري د کفر د اسلام

په مجزون باندي قلم را غلی نه دے
که حلال ئے په مخ ورشي که حرام

حلال عشق دے په رحمٰن باندې راغلي
په حلالو کښې مدام وي احترام

محمود وته نظر کوه مدام ! — چه غلام کړه خپلې مینې د غلام
دینکا نو مدعا خو نیک عمل وي — ساعت نه ګوري که صبح وي که شام
چه د زړه حضور یې نه وي په نمانځه کښې — پکار نه وي مقتدي وي که امام
چه مجنون غوندې په مینه کښې صادق وي — رحمان وایم په هغه باندې سلام

هم نغمې کاندي هم رقص کاهم خاندي
د رحمان په شعر ترکې د ب کرام

خبر نه یم چه یې را دستم له کوم — بیا یم کوم خوا ته استوي چه دروم
لکه روند چه لاس د بل په اوګو کیږدي — هیڅ ذوره لوره نه وي در معلوم
خدایه را پیښه نږۍ لار کړه نالیدلے — لکه ورانه ماشو ره چه وي سر کوم
خراب زړه یم تورو زلفو ته هوس کړه — باري کیوت د مارغه په ځیرپه لوم
هسې کوړې تا عاشقي را باندې وکړې — چه سنګین خاطر یم نرم شه تر مرم
چه نه هیڅ له خدایه ترس و ویره نه شي — الغیاث د دلبرانو له رسوم
ګله را کاندې شراب د لعلو لبو — که جام د زهرو راکاندې چه شوم

د مطلوب له طالبانو چه ځان شمیري
اے رحمٰن اول سیال شه بیا یې مرم

هسې تیز دردمې دوران — ګویا برق دے درخشان
د آسیا په شیر ګردش کا — په زمین باندې آسمان
ګکرۍ دي د سر بیو — چه دو ریږي تر دا میان
پیدا کیږي لن کیږي — نه یې حد شته نه پایان
نه یې حد شته نه پایان شته — نه یې سرشته نه سامان
ځني د ول ورځي بنادي کا — ځني ویر کا د خپل ځان
ځني شمع غوندې ژاړي — ځني ګل غوندې خندان
که یې ګوري یو ګلزار دے — که یې ګورے یو بیابان

یوه هسې تماشا ده!   چه یې هیڅ نشته بیان
کیفیت یې موندہ نه شي   په دلیل و په برهان
چه یې کوم خوارفتن ده   یا یې چرته دے مکان

خدا یې خبر دے په دا علم
هیڅ خبر نه دے رحمن

ویریاران دُو دَ گل خان دَ جمال خان   پکار نه شو په یو وقت دَ زارستان
دهمه واړه یارانو مخ دِ تور شي   که به څوک وبله یاری کا په دا شان
چه یو یار په سوری پروت وی بل په اورکښ   وهغوته به څوک نه وایي یاران
هیڅ تعریف م په دا ډب وایه نه شي   صد رحمت شه په یاریٔ دَ گل خان
تردا هورته د یاریٔ شرط نه څه وی   چه په اورکښ دواړه او سوزی یکیان
چه له آل له اولاده سره رسول   خدا یې دِ نه کا څوک دا هسې مظلومان
چه په اورکښ یو د بل دپاره سوزی   ما لیدلی نه دُو هسې مخلصان
څرنګ شرخ ور هغه اورا وهغه خلق   چه یې مرنه کړو دَ او بکو په باران
الغیاث دے الغیاث دے الغیاث دے   چه انسان کا هسې ظلم په انسان
دنمرود چاره م ولیدے په سترګو   چه یې اچول دا وروته بنیان
م دے زمکی هم آسمان ته تعجب کړم   چه نه زمکه په ناروشوه نه آسمان
م دے لویو لویو غرونو ته حیران یم   چه رنه لوښته دَ دیغ سر غلطان
له دے خپلَ سپي نفسَ م زړهٔ بد شه   چه اوبه څکی یا خواړه خوری په جهان
عالم وا ئي چه قیامت به په جمعه وی   ولید ما په یکشنبه په دا دوران
هزار حیف دے په دا هسے رنګ چارے   واقع کیږی د دنیا په سود و زیان
په عیني او په جمال کښ ګناه نشته   دا مکرونه دی دَ نفس او دَ شیطان
عزیزانو یې خپله ووژله بچپله   دا همه دا ره تقدیر دے دَ سبحان
هسے نه چه دا یې نه کړه نور به نه کړی   چه ئې زړهٔ شی هغه کا ندی بادشاهان
شاه عالم اعظم وګوره چه ئې سخا کړه   په خونو نو واړه ملک دَ هندوستان
وداراا وا ورنګ زیب وته حیران یم   چه ئې څه چارے واقع شولے ترمیان

د حسن حسين غزا و څوک په زړه کړه — چه هغه واره په تيغ شو شهيدان
دا دنګ غونډے او بڼکو دينور غر دلے — بحسابه هسے خلق شو طوفان
هر چه اهل د دنيا دی حلال دا دے — که سړي دی که پيري دی که حيوان
آدم زاد په زمکه يو بل سره وڅړي — په درياب کښ ونه غونډه خوري ماهيان
لکه غونډه چه ماهيان خوري په درياب کښ — په هوا کښ هم دغه کاندي مرغان
خزنده و پرنده دی دا دے دهر — هغه واره يو تر بله مشت و ګريوان
مرداري دا مے دنيا خو هم دغه ده — څکه بيرته ځنې ګرزي درويشان

مکاري د زمانې څه هره نه ده
چه رحمٰن چاله د اندي بيان

دنيادار د دنيا کار کړه دے د دين — خوانين زما په ملک دی خوشه چين
هيڅ کم نه دی تر سپين مخ د دلبرانو — بلکه نه دي زما شعر نمکين
مرادله تور و سپينو واره دلبري ده — موقوف نه دي دغه کار په تور و سپين
مرتبه د سليمان چه چالره ورشي — هيڅ پوره نيمګړے نه ده په نګين
چه رنګين رنګين مضمون پرے بلکش دي — څه پکار دي د بياض ورق رنګين
خوند په خوله ئے نه په سکه نه په خواره مے — آب و خور که د تا چا تلخ دي که شيرين
غرض خوب دے که په خس وي که په خاوره — څه حاجت دے په بستر و په بالين
مصري توره هم په بد غلاف کښ زنګ شي — خدائے څوک مه کړه د بدانو همنشين

څه عجب که په وړځ مهر په شپه ماه شي
د رحمٰن آشنا چنان دی هم چنين

که نظره څوک په کار د درويشانو — خود به ووينې وقار د درويشانو
هم په دغه لار به ورشي خدا او رسول ته — که څوک يون کاندي په لار د درويشانو
هر ګفتار به ئے د خدائے په ور قبول دی — چه قبول ئے دی ګفتار د درويشانو
هسے ګرم بازار په جهان نشته — لکه ګرم دے بازار د درويشانو
په يوه قدم تر عرش پورے رسي — ما ليد لے دے رفتار د درويشانو
همره خلق ئے زيارت که پس د مرګه — چه بازار دي په مزار د درويشانو

بادشاهان د دعجهان واړه پراته دي | لکه خاوره په دربار د درویشانو
هر بهار لره خزان په جهان شته دے | خزان نه لري بهار د درویشانو
د جنت د باغ ګلونو به يې هير شي | که څوک ووینې ګلزار د درویشانو
چه دنیایې کره د دوائي دپاره مترکه | صد رحمت شه په روزګار د درویشانو
د تارون وحال ته ګوره حال څه شه | واشه مه کوه انکار د درویشانو
په هر چا چه د غضب لیندۍ کا کښنه | خطا نه درومي ګذار د درویشانو

درست دیوان د رحمن زار تر دا غزل شه
چه بیان یې کړ دار د درویشانو

اګر څکه نو لري حساب زماد سترګو | بې حساب شه سیلاب زماد سترګو
سپاهي هم همه واړه سفیدي شوه | هسې پرې ووینځه شه کتاب زماد سترګو
که هم سره دي که هم سپین دي که هم تور دي | اوبنو پوره وهر اسباب زماد سترګو
چه رخسار د هغه یار زاڅخه پټ شي | حبط شي آب وتاب زماد سترګو
چه ګدازیې په داګر مراد نیکو نه شه | مګر کاږي دي حباب زماد سترګو
چه م نقش په زړه سره شو نه دیدار شي | کان د لعلو شو ګرداب زماد سترګو
که نور خلق د آفتاب په رڼا زیست کړه | مخ د ترګو دے آفتاب زماد سترګو
مائې خیال لره ابلق د سترګو زین کړه | قدم نه ږدي په رکاب زماد سترګو
لکه تښتي وحشیان له مردمانو | هسې وتښتیده خواب زماد سترګو

مارحمن چه سترګې رونې چپل یاد کړې
اوس محال دے اجتناب زماد سترګو

هیڅوک مشه ګرفتار د تورو زلفو | مه اسیر شه په کفار د تورو زلفو
هم په شان د تورو زلفو به پریشان وي | هر چه کاندي انتظار د تورو زلفو
د محشر عالم به کله په قرار دي | څوک به څه غواړي قرار د تورو زلفو
څوني صبح د قیامت د سپیده نه رڅي | ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو
مګر شمع د سپین مخ شي باندې بله | ګنړه نشته نورانوار د تورو زلفو
تار په تار که د عاشق د خاطر خونه | چه حلقه شي تار په تار د تورو زلفو

چه تمام جهان ئې ښتي په دے دام کښ | څوک به څه کاندي انکار د تورو زلفو
زه له کومه يوه کمنده سرو کا بزم | کمندونه دی هزار د تورو زلفو
په تندی د محتسب که دُره ماته | چه پرے راشي دره دار د تورو زلفو
همره زړونه ئې پيلي په هر تار دی | چه تسبيح کړه خداے زنار د تورو زلفو
ملک د هند و د حبش ئې وار په زير کړو | چه پيدا شه شهريار د تورو زلفو
ښاماران خوندے ګرزي په ګنجو نو | نشي هيڅ په زړه ګښ وار د تورو زلفو
که بل مار چيچلي په لاسو يا په پښو که | په زړه خوله لګوي مار د تورو زلفو

د رحمٰن تر قلم مشک و عنبر ووری
چه آغاز ئې کړه اشعار د تورو زلفو

د دلبرو په درګاه | نه حرمت لرم نه جاه
غوښوي م د زړه ولي | د چشمانو په نګاه
همره قدرم هم نشته | لکه قدر د ګياه
هيڅ خبر له ځانه نه يم | چه ئې څه لرم ګناه
يو نظر را باندي نه کا | از براے عند الله
که له غم ئې سر پټ کړم | بل سر نه لرم پناه

د رحمان په خير به نه شي
حال احوال د چا تباه؟

که څوک لاس له سوده وکاږي زيان نشته | په مشک باندي تلک د تاوان نشته
جدائي د آشنائي نه پيدا کيږي | نا آشنا لره هيڅ غم د هجران نشته
د وفا خريدار بل خوا ته د روځي | دا متاع د زماني په دکان نشته
مګر خان و خدائي ته پاسلي په امان شي | ګنې بل خوا ته د هيچا امان نشته
هغه يار به زه د کومه خوا ته غواړم | چه ئې هيچرته منزل و مکان نشته
دلبران که هر څو ډيردي په جهان کښ | زما يار غوندي دلبر په جهان نشته
چه هم قدلري هم زلفوم سرے څرندے | د غه سے رنګ آفتاب په جهان نشته
عشق عاشق لره يو همے ګلستان دے | چه و باغ و ته ئې لار د خزان نشته

عاشقان په عشق کښې واړه سلطانان دي — په دا ښهر کښې نيستکار و ناتوان نشته

که مجنون غونډې په عشق کښې څوک صادق شي — د ليلى په دروازه کښې دربان نشته

دانايان به د رحمٰن په قال پوهيږي

دلته کار د هر نا اهل نادان نشته

ياد وي په خوله مکه او مدينه — نسکور پروت يې د عورتې په سينه

زور رندسر لکه غنچه مراقبه کړي — پټ يې نقش د زړه رخت وي رنګينه

د اطلس و تبا غوړي نه دې مومي — له ناکامه يې خرته کړه پشمينه

عبادت يې څو ستيږه تر معصيت کړ — څه خو د نيسه و ځان ته آئينه

کينه بد ده بېشکه جنګ حرامردي — نه له نفس و له شيطان سره کينه

د مردانو کار له نفس سره جنګ وي — نه زنان غونډې له نقش نګينه

تر ناپاکو نارينه ؤ ده بهتره — پاک دامنه پرهيزګاره ارتينه

دوه بيند اره ارتينې له يوه کونبې — صد ته شه سل بي د ينه نارينه

نيکو کار سړې بهتر دې که خوړ سالي — تر سپين ږيري بدکردار ديرينه

بدکردار که صد ساله وي ورحمٰن ته

څرګنديږي لکه طفل شبينه

عاشقي را باندې سوړې کهې مري — هيڅ مې نه دردمې بې ياره ترمرګي

څه اثر به نه د غفل وي په سر کښې — د هغو په سر چه کښيني چا پيري

د مژګانو په پنجه مې زړه وکاږي — خدائې د ترکو ستې ستر ګې کړې زمري

علونه به نه بيغمه نور څه نه دي — هر چه کاندې د خوبانو چاکري

لږ د صبر سبق ماله هم را کړي — که په عشق کښې څوک څه طاقت لري

خدائې څه د دې کو تپوال په لاس کښې ورکړم — چه شپه ورځ مې غزري لکه طوري

په صورت مې نړئ تبه شوه ولاړه — تا چه دواړه ستر ګې توره کړې نړي

د وصال د لارانکوم طرفته غوارم — چه بندي شوم د هجران په کمپري

نور د شمع په فانوس کله پټيږي — تاچه واغوستې د خيال جامې نړي

زه رحمٰن په زړه نره کړم هغو جونو — چه يې ملا دې د وينته په دود نړي

د عشق زخم څه د زخم په شان نه دے | د بل زخم په څیر سهل و آسان نه دے
عاشقان د معشوقې سره پوهیږي | دغه راز د نور عالم ته عیان نه دے
عاشق نه ده که کوره حیراني ده | کوم سړے په دغه کار کښ حیران نه دے
یو عاشق د څوک را وښیئ په عشق کښې | چه یې درد په مخ دا دبنکوردان نه دے
عمر د ادبکے د عاشق په ګریوان ورې | ته به وایې چه یو سیند دے ګریوان نه دے
د اهجران څه چه لے مرګ په عاشق ګران کړو | کم ځان ور څخه د روح هیڅ ګران نه دے
نور غمونه که په ځان د سرې بد دي | غم د ترکو بد د هیچا په ځان نه دے
د درزخ دا ور که تاؤ د حده دیر دے | برابر د بیلتانه د نیران نه دے
چه بالا شي څوک په عشق کښ کم عقل | دا کم عقل دیر هوښیار دے نادان نه دے

چه بے یاره زۀ جهان وته نظر کړم
رحمٰن دایم چه ویران دے ودان نه دے

هغه یار چه بیوفا دے څه یار نه دے | هغه کار چه بے بقا دے څه کار نه دے
که د سر بندل دشوار په ما وتا دي | دا په عشق کښ سهل کار دے دشوار نه دے
اندیښنه سړے بیدار کاندي له خوبه | کم اندیش که بیدار دے بیدار نه دے
یکه څه عمر دے عاشق لره وصال دے | د هجران عمر د عمر په شمار نه دے
د چشمانو په شبل کښ تیر و بیر شي | اعتبار د زماني اعتبار نه دے
که د سلو زوی یو پلار شي به یې څه کا | بیوقوف زوی د پلار څه په کار نه دے

معشوقي همیشه ناز په عاشق کاندي
رحمٰن هیڅ له خپل یاره آزار نه دے

ستا د عشق حرفونه تور نه دي ګکوزري | هم په دا چه نوشته په جګر خون دي
تش به نه شي هغه خم د عشق له میو | چه لے خاررے د فرهاد و د مجنون دي
د دنیا چارے همه دا ره فاني دي | دا د ستا جور و جفا ولے افزون دي
مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دي | چه په سر کفن له زمکې رابیرون دي
چه بې هیڅ بهار لیو څخه نشته | جونه نه دي سکه ګنج د قارون دي
باد شاهان په یوه دم کښ ګدایان که | ماليد لي فسادونه د ګردون دي

د رحمٰن د زړه خوناب مگر قبول شو
چه ځمونه د دلبرو پړ ګلگون دی

د عاشق نظر په خورد و په خوب نه شه    مراد یې په دیدار له دربل باب نه دے
ته نظر په خپل هنر په عقل مه کړه    دا اسباب په عاشقۍ کښ اسباب نه مه
چه د یار سره حساب د دنیا کا مذی    دغه هیڅ په عاشقانو حساب نه دے
چه عاشق په عاشقۍ کښ رباب نه شي    که د درستې جهان ارباب دی ارباب نه دے
هرچه یار منع کوی له خپل میاره    دا کتاب د عاشقانو کتاب نه دے
دا حجاب چه نور عالم یې حجاب بولی    دا زما د یار تر میانه حجاب نه دے
دا ثواب دے هم سوځ دیدار له مخ    ما کنړلے دغه کار په ثواب نه دے
که لیدلے زلیخا یوسف په خوب وه    ما یه وینبه دی لیدلے په خواب نه دے
صبر و نیه په ځمکنے که مراد غوارے    هیڅ کړے دغه کار په شتاب نه دے

رحمٰن سوال د بوسی کړے دے له یاره
لا یې هیڅ غنچه مرندلے جواب نه دے

همیشه دے زما سرو ستا قدم دی    ترهغه ساعت پورے څو مې دم دی
ستا له لاس واره ملره نافع دی    که مې زخم وی زهر که مې مرهم دی
زه به تا هسے گمان کړم چه سفال دی    که نسکور مې په لبانو جام د جم دی
نور عالم که د دنیا په ښادۍ ښاد دی    زما زړه دے مدام ښاد د ستا په غم دی
که په زړه باندې مې سل غمونه راشي    دا ستا غم دے ترهمه و مقدم دی
ما دے ستاله غم خدایه ببغیمه نه کا    ترهغه ساعت پورے څو مې دم دی

رحمٰن ستا په مخ مئین دے خدایه خبر دے
که په دا کښ به هیچرے زیات و کم وی

هرچه ستا په زنخدان کښ یې منزل شي    لکه حسن په تناره کښ به جلبل شي
څوک چه نوم د استاد خونړو په خوله واخلي    که یې زهروی په خوله کښ هم عسل شي
په هجران کښ زه به برګ و بېنوا یم    لکه کښت چه او به نه مومي شډل شي
په عاشق باندې دا هسے گمان مه کړه    چه یار زړه وړ غنه یوسی تش کوګل شي

په جهان ترآشنائی خوا ږه څه نشته     ولې حیف دے چه جهان پکښې حنظل شي

زه رحمٰن بې یاره هسې شول وشل یم
لکه کب چه بې محیط شول و شل شي

دواړه سترګې مې کړې دا ستا په لور دي     مدام ډوبې د فراق په آب شور دي
کنږ ولې د دواړو سترګو ستا په طمع     وهر لور ته مې نیږلي کودپد کور دي
چه مې ستا خیال د ترګو ولیده په زړه کښې     دواړه کښې مې د زړه وته ننګور دي
ما قبول د رقیب ناز کړه ستا د پاره     سود و زیان په دا جهان کښې خور و رور دي

په رحمٰن باندې دا هسې ګمان مه کړه
چه بې تا په نور څه غلېږي هغه نور دي

د ساقي په لاس کښې جام د میو ناب دي     مطرب اینبي په زانو باندې رباب دي
ته چه ما وته توبه وائې ناصحه     په دا وخت کښې چا څخه د توبې باب دي
زه چه ځان منع کوم د عشق له کاره     په دا هسې کار کښې کوم سود و ثواب دي
د آسمان چه لوړ په عقل کښې بالا شي     په محیط د عاشقۍ کښې یو حباب دي
هر چه ژغوري سر و مال په عاشقۍ کښې     هغه کړې کور په مخکښې د سیلاب دي
ته چه خوب غواړې په عشق کښې دا ته وایه     کوم چا کړې د زمرې په خوله کښې خواب دي
بې عمل که کتاب ګیږدي په سر څه شو     کویا اینبي یې تر پښو لاندې کتاب دي
چه د شر له عملو نه خیر غواړې     تشنه لب غوندې سرخوش په سراب دي
د دشمن له مکارۍ ورو ویرېږه     په زمۍ یې غلط مه شه سنګ د رآب دي

عبادت په شتاب هسې کړه رحمانه
لکه عمر چه د تلوني په شتاب دي

غواصان که ګوهر غواړي ګوهر دا دي     بېدلان که دلبر غواړي دلبر دا دي
زما یار غوندې به بل یو دلبر نه وي     د جمله دلبرانو سرور دا دي
خوند دلبر او د چاه زنخدان دي     راشه ګوره زمزم دا دي کوثر دا دي
چه دې وصل او هجران وته نظر کړم     زه ګمان کړم جنت دا دي سقر دا دي
ته خطبه په منبر څه لولې خطیبه     قدم کېږده په ځان باندې منبر دا دي

ومکه سفر آسان دے مرد هغه دے　　چه له ځانه سفر کاندې سفر دا دی
هر منعم چه دعوئ د قلندر کا　　هغه نه دی قلندر قلندر دا دی
چه توانګر د قناعت په خزانه شي　　بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دی
دا هنر نه دے چه خاورے څوک سره زر کا
چه زر خاورے کا رحمانه هنر دا دي

دنیادار که مستغني په سیم و زر دي　　هنرمند و ته ګنج د خپل هنر دي
بیهوده به زورآور دوئ ته وائي　　د دنیا سړے که هر څو زورآور دي
هسے مه وایه چه زه یم په جهان کښ　　پیدا کړے خدائ د سر د پاسه سر دي
څخه ئے وبیان پیغمبران کړل　　نه چه هر سړے ولی او پیغمبر دي
جو دانه تر دیو لعل پکښ پیدا شي　　نور جهان واره د تور و کانړو غر دي
پوپادشاه دي چه لښکر ورپسي درومي　　نه په هر یوه سړي پسي لښکر دي
پیدا کړي خدائ سړي په تفاوت دي　　نه هسے چه جهان واره برابر دي
که د عمر و رفتن ته څوک نظر کړه　　دا به وائي چه آفتاب د نماز دیګر دي
چه ئي سر په زمکه ایښې وي دیار ته　　په آسمان باندې خښتلي لکه نمر دي
تعجب زما د پیرو د ښکو مه کړه　　ما موندلے په دا بحر کښ ګوهر دي
د ریا خرقه ئي خدائے مه کړه پیغاره
رحمن کوږ دستار ترلے قلندر دے

که دلدار په دلدارئ زما قدم بږدي　　ګویا هر قدم په لارے د حرم بږدي
خُلے لري که بے منت بوسه را کړي　　کوم کریم په چا منت د خپل کرم بږدي
معشوقه مشفقه بویه مهربانه　　نه قارون چه په ځان اسم د خاتم بږدي
هسے پټ لرم دا زیر رخسار له خلقو　　لکه زر چه څوک له خلقو پټ په خم بږدي
خدائے د ما وته ګوره د جنت کړل　　که د غوندیم په زړه باندې د غم بږدي
هیڅ ما نه ئې څوک نه مستور ترکو نه کا　　کوم یو مست دے چه قدم په لارے سم بږدي
راحت نه دے بے زحمته چا موندلے　　کوم طبیب دی چه په روغ صورت مرهم بږدي
زه هر کوره تر خپل صنم پورے شرمیږم　　برهمن چه سر په پښو د خپل صنم بږدي

واسمان ته لاس د عقل نه رسیږي — دا خو عشق دی چه په عرش کرسي قدم ږدي

زه رحمان یې تاج کړم د یار له لاسه!
که پنډ په سر د جور و د ستم ږدي

د دنیا کاروان کلوا به غلول دی — دا کان په هیڅ مکره چه یې خپل دی
هیڅ مزه په دا جهان کښ پاتې نه شوه — دیګ سوړ کیږي ادبو پوري کول دی
یو زه غوږ د غوبنو شته په هر چا پوري — که د شرم یو زه غوږ غواړي باطل دی
که ذره د ره کاسې دانې دي په کندو کښ — پس له شام هسې دا یه چه د بل دی
که ته یو یا ده عیبونه د چا شمار کړې — بل به هسې تا ته وائي چه ستا سل دی
نصیحت د ناصحانو اشرف نه کا — د سپي اد پینې خوشې تکول دی

د ناا هل همدمان دی نه پوهیږم
که موچې د رحمان بندې په کوکل دی

هر نګار چه بیوفا دی نګار نه دي — په ګلزار کښ چه ګل نه دی ګلزار نه دي
په تلخئ د میوست خلق یې خوښ دي — هغه خار چه بوی د ګل لري خار نه دي
دینداري دنیاداري دی شمله لره — ما الید لی هیڅ دیندار دنیادار نه دي
که روزګار دې په جهان کښ بادشاهي ده — ددی نور عالم روزګار څه روزګار نه دی
چه تصدیق یې په خپل زړه کښ محکم نه دی — دا په خوله ظاهرا اقرار څه اقرار نه دی
په هر زړه کښ د خپل یار د غم غبار دی — دغه ابر د رحمت دی غبار نه دی
چا به کسب بې له عشق نور څه نه کړه — باری کنج دی چه هر یو ته اظهار نه دی
معشوقه د ناله هیڅ سره نه کا — که زه کوم یو د دی رخت خریدار نه دی
د خپل یار وصال د خدائې په دا د مونده شي — دغه کار د هیچا په اختیار نه دی

په رحمن باندې منت د معشوقو دې
د بې حسنو معشوقو منت بار نه دی

هغه زړه چه خدای روښان کا جام د جم شي — په دا جام کښ ورښکاره تمام عالم شي
په آدم کښ د حیوان خویونه هم شته — بیاهاله یې آدم بوله چه آدم شي
چه خویونه د چارپایو پکښې نه وي — سړي خوښ په سړي هله مسلم شي

چه آخوندې يې لباس دی د پاکانو ‏ دنيا پاکو چارې کاندي خوبه کرم شي

که هر څو طعام لذيذ وي مزه نه کړي ‏ چه يو ذره نمک يې زيات و کم شي

ښادي هر چيرې د غم په اندازه دی ‏ ډېر خوبه څه ښادي وي چه بې غم شي

هر چه خپله رضا پاس لوی قضا ته ‏ که هر څو په ځان ناخوښ وي خوشخرم شي

عاشقي چه ترکمان دي زر رسيږي ‏ د خپل يار له لاس زخم يې مرهم شي

که په ځان باندي قدم کيږدي رحمان
نه فلک به ور لاندي تر قدم شي!

د عاشق بې خپل ياره قرار نه شي ‏ بې طبيب قراري د بيمار نه شي

چه په لوح محفوظ کښې ليکلي ليوني دي ‏ په تعليم د معلم به هوښيار نه شي

زوړه ديلار په غيږ کښې پروت دی روح زار شي ‏ د قضا علاج په مور و پلار نه شي

ډېر خوچه خدای ته کمال حسن روزي کړه ‏ هيڅ نقصان يې د منکر په انکار نه شي

درد و غم د عاشقي چه ډېر مشکل دي ‏ هيڅ سړی دې په دا درد گرفتار نه شي

زه همه عمر له خدای دغه خواست کړم ‏ چه دې يار له خپله ياره ويزار نه شي

که هر څوي دلبري و د محبوبي کا
د رحمان په ترکو هيڅ اعتبار نه شي

داچه مست په ميو راغي يار د چا دی ‏ بيا به تاخت کا په کوم غولي وار د چا دی

چه زړه سوی د حرم په صيد هم نه شي ‏ دا بې درده بې صرفه ښکار د چا دی

ما خونه دي څوک به څچې آزار کړي ‏ داچه ما آزاره وي آزار د چا دی

چه ئې درست جهان د مخ په رنګ ازين کا ‏ دا آفتاب غوندې روښان رخسار د چا دی

چه بلبل يې رسيدې تر کمو نه شي ‏ دا د ننه په حرم گلزار د چا دی

چه هيڅ ترس په زړه کښې نه لري رحمانه
دا نا ترس و بې پرواه نګار د چا دی

په يو ذره به وزي بيا به مور يې ‏ په يو ذره به کرم بيا به سور يې

ته ملکي د خدای په غواړې ځان به ورې ‏ او که پس له ځاني پايې خوبه زور يې

سړی که خوی جوړ که ناجوړ دی ‏ خدای ئې خونه لي چه به تل تله جوړ يې

عاشقي به د آسمان غوندې شر کړي کا — که مجنون غوندې هر څو په صورت ورېږي

عاشق بې جذبې چرې دے رحمانه

تر مجذوب د يار په مهر کښې مردرېږي

ورک شه ورک شه بدکردار او بدسړی — که د در ورک د عزيز وي که پردی

تر هغه لا نيکوکار بېګانه ښه دے — چه بدکار شي د چا زوی يا نمسی

لوګي لوښي هسه داره پرے مردار وي — بدکردار دي سورلنډي يا وزي سپي

هغه خلق به هسه واره ليوني کا — چه په کلي کښې يو سپے شي لېوني

بل علاج د ليوني سپي نشته — بے له مرګه چه ترې ډک کاندي کوهي

حرام خور د محتسب په حساب وي — که په توره يا په تيغ دي مرني

مرني وئيلي بويه د هغه ته! — چه بے وجهي آزار نه کا هيڅ سړي

ديګ يې ايښي په ديګدان درمي تر تيغ دي — چه يې سور په آه سرد نشي نغري

هسے فيض يې وهر چا و ته رسېږي — چه بالا شي د خپل وخت خاتم طائي

اے رحمانه چه بد فهم د بدکرکار شي

ما ته دا يه سپے بهتر دے که سړئ

چه وصال د خپل جانان مې دے موندلے — ګنج د ورد مرجان مې دے موندلے

هره طمع مې د خپله بخته نه وه — نه پوهېږم چه څه شان مې دے موندلے

که په ډېر مشقت لاس لره خدائے راوست — زه خو وايم چه آسان مې دے موندلے

چه مې په نفس وصال ورسره وشه — داره اجر د هجران مې دے موندلے

څه عجب دي که تمام جهان زما شي — چه بادشاه د درست جهان مې دے موندلے

زه رحمان په خپل اشعار شکرګذار يم

چه دا هسے رنګ ديوان مې دے موندلے

چا چه کړے د دنيا و ته اسرے دي — د مغو په سر همه خاورے ايرے دي

نادانان که د دنيا په کار نازېږي — ودانا و ته دا و ښتے مسخرے دي

چه بے خدايه محبت که هغه خلق — نارينه يې واره خره او ښځې خرے دي

وسپين بزيري و ته مه وايه سپين بزيري — همګي واره ضغران د ګوارے دي

چه نه فیض نه څه بهره ځني مونده شي  هغه کي واړه بې فیض بې بهرې دی

ذخیره د دنیا مه کوه رحمانه

دا همه واړه د خاورو ذخیرې دی

آشنائي توره بلا ده آشنا مه شې  جدائي به دې فنا کا فنا مه شې

درد و غم به دې د زړه ولي کړه غوڅه  ګرفتار په درد و غم د جانان مه شې

په زیړ رنګ به دې تل سرې اوښکې بهیږي  د دو رنګو په څېر ګل د رعنا مه شې

هم په دا چه دروغژن د خدای دښمن دی  وهیچا ته دروغژن په وینا مه شې

که اعلی مرتبه غواړې عاشق ده  نور همه واړه ادنی دی ادنی مه شې

همیشه به سرګردان په فکر ناست یې

د رحمان هسې مشغول په ثنا مه شې

چه په نور څه پوهه زړه تړې به خدایه  څه پوهیږم چه به ځای کړې که بېځایه

دانسته چه په بل تل ترتله پایې  که بیا پای څه خو تر سلو کالو پایه

که د سل کاله شي عمر خو به تېر شي  دغه پس راغه کړي راته وایه

سم له لاس چاره نه شي مرد هغه دی  چه بېید اروي و علیم و ته له ورایه

تړ پیدا اصل کښ سره څه خاوره نه یې  د چارپایو چارې مه کوه دوپایه

مرتبه به دې د هیچ او د میږي شي  زړه په غرور و غوښو مه تړه همایه

مور به نه شي په حرص بې قناعت  اې په تخت د اورنګزیب ناست ګدایه

وړاندې سرایې لره توښه تړه رحمانه

څو سفر دې کړې نه دې له دې سرایه

له دې کښ له پوزي خو به ولاړ شې  تر و بیا خدای خبر کوم خوا ته به لاړ شې

په ظاهر صورت خو هسې معلومیږي  چه به خس غوندې تر پښو لاند تار شې

د آسمان زمکه به وي او ته به نه یې  په ودانه و دانئ کښ به ویجاړ شې

د بهار د ګلو عمر مدام نه وي  عندلیب غوندې به پاتې په اهار شې

په ویلار ویلار به ځان درپسې ورک کړ  چېرې نه وي چه د ترکو په ویلار شې

که لیلی غواړې بایده دی دا رحمانه  چه مجنون غوندې ساکن د کوه وکار شې

تۀ په هره کړې غم د سیم و زر خورې — زۀ دِ هره کړې دیم چه خپل سر خورې
عاقبت به دِ یو خند له بیخے دوزی — تۀ چه تل په هر یو ښاخ باندِ ثمر خورې
په عوض ئے کوم طاعت کړے راته وایه — دا نعمت چه په هر شام و هر سحر خورې
رزقی به خورم په هر انتظار کا — تۀ څلور ځله طعام پهر په هر خورې
که یو ځل ترکساله ورسیږی — نور به غوښے دخپل ځان لکه ثمر خورې
که ښیښه د ناموننګ دِ شی ترخنګ — د هر چا په کجروی په خپل جګر خورې
بے هنر وله تند هم زهر قاتل دی — تند ئے وګڼه که زهر په هنر خورې

نهال په زړهٔ د صبر کړه نخل رحمانه
چه مدام د برخوردار په خیر بر خورې

تۀ چه خپله بے عقل هوښیاری بولے — کاشکے بیا مومی د غوښتو په نرخ شولے
عشق یو داد دے په عاشق باندِ له خدایه — هسے نه دی چه ئے پیسے یائے پرولے
زلیخا غوندِ به بله شیدا نه وی — که د مصر مستوری شو داره تپولے
هغه بحر غمه په بحر حساب نه دے — چه اوبه ئے خاک آلودی وی ختولے
له هغو سره به څه فکر د یار وی — چه په غم وی د کاله یا د کهولے
عاشقی د نغری پد غایه نه شی — څو په یار پسے وانه خلی ځلی زړلے
د وصال په نعمتو نو غره صد ش. — جدائی خلقے کړے په زړه خمولے

د رګو هر په تله نه دی چا تللی
د رحمان شعر ګوهر دی ځمیئے تولے

په نامه د هغه خدائے م دا بیان دے — چه یو نوم ئے په نومونو کښ سبحان دے
هم بادشاه دے د جمله و بادشاهانو — هم دیوهر سلطان په سر سلطان دے
هغه کار چه وهر چا ته مشکل دے — هغه کار وا به وده وته آسان دے
څوک آفتاب شی په آسمان را خیژولے — دهٔ آفتاب را خیژولے په اسمان دے
څوک په شپه کښ شی مهتاب پیدا کولے — ده په شپه کښ پیدا کړے ماه تابان دے
څوک د نمر پد مخ حجاب شی غورولے — دهٔ پټ کړے نمر په ابر کښ پنهان دے
څوک یو څاڅکے پریشی شی له آسمانه — نزول کړے ده په مونږ باندِ باران دے

څوک شي روح ننوېستې په يوه ماشي — ژوندے کړے دۀ په روح تمام جهان دے
څوک وسنګ شي رنګ دګلو ورکولے — ده وسنګ ورکړے رنګ دارغوان دے
څوک له خاورو شي يوګل پيدا کولے — دۀ له خاورو پيدا کړے ګلستان دے
څوک له سنګ شي ګوهر پيدا کولے — ده له سنګ پيدا کړے درمرجان دے
څوک شي رزق هر مخلوق ته رسولے — دے دهر يوه مخلوق روزي رسان دے
څوک بنده لره ايمان شي ورکولے — دۀ ورکړے هر مؤمن لره ايمان دے
څوک له زمکي و آسمان نه شي ختلے — ده عيسیٰ لره ورکړے دامکان دے
څوک له خدائے سره خبرے شي کولے — ده موسیٰ مشرف کړے پداشان دے
څوک اينبودي په توسن د آسمان زين شي — اينبي ده په هوا تخت دسليمان دے
څوک په سينه بزيره پائي ترقيامت — ده په خضر باندي کړے دا احسان دے
چه په دۀ شي هغه کار په هيچا نه شي — هر توانا ددۀ ترتوان پورے ناتوان دے
په اوبو کښ لے دکانړ د کوټ پيدا کړ — دۀ ورکړے پکښے اورلره مکان دے
په سجود ئے زمکه سر دے کولے — هم ئے زور ند په رکوع سره آسمان دے
هره ونه په قيام ورته ولاړه — هرګياه يئے په تسبيح سره زبان دے
همه واړه په تسبيح ددۀ مشغول دي — که ملک دے که پيرے دے که انسان دے
هرماهيئ په درياب کښ حمد وائي — هرمرغه يئ په چمن کښ ثنا خوان دے
حق په حق يئے هيچا نه ده ثنا کړے — نه له هيچا و تعريف شوے دا بيان دے
مخلوقات توهسے نه دے پيتراند سے — لکه ده سره چه قدر دخپل ځان دے
حد پايان ئے هيڅ سړي موندلے نه دے — معرفت يئ هسے بحر بې پايان دے
نه ئې زيان نه ئے زوال نه ئې نقصان شته — دے بې زيان نه بې زوال بې نقصان دے
نه ئے مثل نه مثال نه ئے مکان شته — دے بے مثل بے مثال بے مکان دے
پاک ئے ذکر ده بے شک و بے ګمانه — له هغه چه دچا شک دچا ګمان دے
نه ئے څوک په سترګو ويني نه ليدۀ شي — ادبے چون بے چګونه بے پايان دے
که څوک وائي ليده نه شي ليده نه شي — ادکه وائي ره رچا وته عيان دے
منزه دے له جمله دو جهتو نو — او بيا هر جهت په دۀ باندي ودان دے

له زړګو نو صفتونه نورا شي، ګوره
چه یې کړې نیم صفت عبدالرحمٰن دے

هغه دم چه زړه ملال شي     یو ساعت ورباندې کال شي
حیران تللي وي په فکر     فراموش یې تیل وقال شي
نه یې ګفت نه یې شنود وي     په غوږ کونړ په ژبه لال شي
نه جواب وچا ته کاندي     نه یې غوږ د چا په سوال شي
علم عقل ځني ساسي     درست صورت یې خواب خیال شي
په رنړو سترګو اوده وي     لکه نقش د دیوال شي
توت یې وینې د ځګر وي     هم د غه یې اشتغال شي
د چشمانو له بارانه     په رخسار یې پشکال شي
په سبب د عاشقۍ     تیر تر آل وتر عیال شي
هم تر آل وتر عیال     هم تر آل د تر منال شي
په خپل دود و په خپل عزم کښ     تر عالمه فارغ بال شي
نه طاقت نه یې مجال وي     بے طاقت وه بے مجال شي
که ژوندے وي په جهان کښ     د مرده ؤ په مثال شي
په خشکۍ کښ ماهي ګوره     هسے بے تیغه حلال شي
پا سیده نه شي له خایه     په زړه غوښ په تن کهال شي
د ویشتلیو په څیر یون کا     له کي خلقو په دنبال شي
لکه خس د لوئے لارے     تر قدم لاندې پائمال شي
خدائې له غم سرے ژغوره     بیا لا بویه چه خوشحال شي
چه د زړه ولے شي غوښي     نور ژوند ون یې په اشکال شي
د باغبان سترګې که سپینې     چه تازه نخل د نهال شي
روئیدن د کښت آسان دي     پرورش یې ډیر جنجال شي
و ویرانۍ په یوه دم شي     ودانۍ په ډیر اشکال شي
چه پلار و مرې بیا لا بوید     چه یې زوی با کمال شي

ځوک خبر دی له دے دوړه — چه په ما به پیش څه حال شی
چه په حال کښ یې حال نه وی — څه امید په استقبال شی
ډیوه ساعت لډ مخه — خدائے زده څرنګ به احوال شی
د دنیا چارے فانی دی — رفت آمد یې په یو فال شی
په مثال کښ که سورے — خواؤ شا د هر دیوال شی
اعتبار په اوبو مه کړه — چه استادي په غربال شی
د بڼو په څنبول کښ — شان شړئ که شړئ شال شی
که بادشاه د ولایت دی — کنه ولی په لاس کنګال شی
په ثواب ئے مه نیازیږه — په یوه ساعت وبال شی
په کمال یې مه نازیږه — په یوه ګړئ زوال شی
دهاتیا نو سوداګر وي — بیاد ګاؤ خر دلال شی
جوهری وی جوهر سپلوری — خاورے اغزی کزال شی
کلال وګل کاری کا — فروشنده د مات سفال شی
په هستی کښ ئے اشراف وی — په نیستی کښ ارزال شی
د ځوانۍ په وخت کښ شیر وی — د پیرئ په وخت شغال شی
چه مشهور په صداقت وی — پوچ کوفی واخلی بطال شی
محتسب وی احتساب کا — کوتهوالی واخلی کوتوال شی
نیکو که روی نیک عمل کړی — بد کردار و بد افعال شی
سرنوشت د سړی خپل دے — یو عیسی وی بل دجال شی
چه نیک بخت وی نیکوي کا — چه بد بخت وی بد سګال شی
لاس وپیځے د هغه نشه — چه خوشخوئی خوش خصال شی
په هجران ناامید مه شه — خدائے قادر دی که وصال شی
په حرامو کښ امید کړه — ګوندې نخ دی په حلال شی
کافر و باسی لد کفره — په یوه ساعت ابدال شی
نور بهتر که ندی ترسپینو — په سپین نخ باندې تورخال شی

آرزومند د یوه خس وي      خداوند د ملک و مال شي

چې سیالي یې کړې نه وي      له سیالانو سره سیال شي

په ډېر عمر متفصل وي      په ساعت کښې اتصال شي

ممکنات به منع نه کا      که ښوک سل ځلې سنبال شي

چې د خدائے رضا شي پیښه      رمل پاتې در مال شي

نال به څه کړي رحمانه

خپل انعال د سري نال شي

هر چې کښت یې په باران او په سیلاب شي      د هغو عمر به داره په عذاب وي

هغه ملک چې پکښې سیند د رود بار نه وي      دهقانان به یې همه خانه خراب وي

د آسمان تر به یې سترګې وي ختلې      د باران له انتظاره به یې خراب وي

لکه ښوک چې کړوي یې په کړهي کښې      د هغه ماهي په طور به کباب وي

لا به کله باران نونه پرے نزول شي      چې نخیل و زراعت به یې سیراب وي

همیشه له خدائے خواست د ادبو کا ندی      که ئے چرے خواست په عمر مستجاب وي

لکه تل چې یې په زړه د ادبو غوښ شي      همره غوږ یې نه په چنګ نه په رباب وي

که همه عمر باران ورباندې وورې      راکړ مو یې په صورت کښې د آفتاب وي

د ګرمۍ و د خشکۍ له دهشته      د آفتاب په خیر ګمان یې په ماهتاب وي

د ادبو له ډېرے ډېرے تیمتی سه      لرګي لوښي یې مردار په منجلاب وي

فرق د پاکو د ناپاکو ادبو نه کړي      که اوبو یې ګډې ورته په شتاب وي

د ادبو په غلا چې ورشي نه جارو زي      که ساکن د خانقاه او د محراب وي

د ادبو په ویش چې ورشي انصاف نه کا      که په لاس ئے ورقونه د کتاب وي

د ادبو ثواب ئے نه کیږي له لاسه      که په کوټ اوبو یې عین د حج ثواب وي

د باران امید یې نه کیږي له خدائے      که ئے شپه او ورځ په سر باندې سحاب وي

پلیتي به ئے له تن څرنګ درومي      چې اوبه پکښې نایابه تر ګلاب وي

هیڅ یې مه پوښته له غسله او دسه      چې یو څاڅکي پر ګوهر غوندې نایاب وي

په سبب د ډېره ډېره تیمم      همیشه یې سپېره ډېره په تراب وي

دلیې سړي په مخکښ دي آب چېرې
هغه خلق چه بې آب وي خو بې آب وي

په آبې کښې لا هم دي خونه ویرانه
هغه کلي چه دېل کلي پاشناب وي

یو به نه وي هېڅ برې له سړي ورخه
پاشناب سړي که زوئي د ارباب وي

هم حساب له عزیزانو کله مومي
تل تر تله چې دېل لاندې حساب وي

نه طاقت د بد و دېل لري نه صبر
تل مدام چه مذۀ دهلي پېچ و تاب وي

نه ئې مرګ نه ئې فتنه له لاس کېږي
لاس تړلي د خپل شرم په طناب وي

چه ئې ژېست یا ئې روزګار په محمد شي
همېشه چې له بدئ اجتناب وي

که یوه بده د بیاېئ له خولې ووزي
هغه دم ئې چه خپل ځان باندې عتاب وي

هسې شان سړي تېري ور باندې وکړي
چه په عمر نه د سوال نه د جواب وي

همسایه ئې چرېکا د پوښتنا نه شي
او په اصل به مرچي او یا قصاب وي

ملایم د نېل اثر ور باندې نه کړه
چه په زړه کښې ئې نه شرم نه حجاب وي

که دیو وي د سړي په صورت شي
تر کمان کړې چه سړي دې یا د واپ وي

په هېڅ رنګ له بد خوئي نه جار وزي
هسې مست د جاهلۍ په شراب وي

چه اشراف هسې د خرسو په لاس کېوزي
ترو خلا مې به ئې له خون په کوم باب وي

هسې رزق دې خدای هېڅ لره ور مه کا
که به رزق د چا په هسې رنګ اسباب وي

ترا هسې زمیندار و هغه بنده دي
چه نوکر د یوه تورکا نر کلاب وي

نوکري د یوه سپي ور لره بنده ده
هغه پرېږده چه لا نوم ئې د نواب وي

د خشکو له غمه توم د رحمان خوښ دې
که رفتن ئې له جهان په شتاب وي

تا د نور و سترګو په یاداشت م اوښي اوري
تې د هکه پر یوزي په شبران د غم کښې تورې

زلف دې سایه کړې مخ د اور په جهان بل کړه
هس چا ته چه ګورم نیم په نمروي نیم په سورې

څوک دې په وصال کښې تند نباد څوک څکر خوړي
چا وکړ و دیدن د چا شو سپینې د سترګو تورې

اور د تا د رخسار دې ما په خپلوا وبکو بل کړ و
تل په آتش سوزي آئینه چه مخ ته ګورې

سترګې م د تا د خیال پر یوتي ورزه ته
څه شر که ئې سترګو مونږ څه په بل لورې

کله رقیبانو ته نظر کړي کله ما ته
شا باران د مه به نبوند د یوشان وورې

ځان په مستو سترګو باندې مه غلوه رحمانه
دا مستان هوښیاردي له حکمت سره ښوري

ته چه ماته وائې چه په چا باندې شیدا یې ... زه په تا شیدا یم وایه ته چه یار د چا یې

زه به تا په کوم د زیرکئ شم پوه دلے ... چا زده لکه تا زده هم وایه چه څه وایې

زه چه کبر جن دم عاشقئ م ګوډن مات کړه ... ته چه لکه وے هم هغه هسے کبریا یې

ځان که ستا په مینه کښ فانی کړم څه به وکړم ... ته چه په دا هسے رنګ له آه بی پرواه یې

مرګ م په تا دے خدا ئے اختر کړو نه پوهیږم ... څه دې حاصل هم شته که مطلق په مرګ زما یې

څه شوکه یم زه انګشت نما په مینه ستا کښ ... زیات له مانه خو ته هم د قاضی هم د ملا یې

ستا د عشق تر تورے کړئ د رحمن ځان شه ... دا هم سهل کار دے زما یاره که په دا یې

## دویم دفتر

دوباره دې را تله نشته په دُنیا ... ته دې وار دے که دروغ کړے که رښتیا

هر چاره چه تر وخت تیره شی عنقا شي ... عنقا نه دے په دام نښتے د هیچا

تر ورځ تیرے اوبه بیرته نه چار وو زی ... نه چار وو زی تیر ساعت په بیرته بیا

تیر ساعت په مثال مړے د لحد دے ... مړ چا نه دے ژوندے کړے په ژړا

که مقصود لره تلوار کړه وخت کوتاه دي ... غره مشه ددے عمر په بقا

هره نېنه چه صحیح ګنړی په زړه کښ ... په غرور به هغه نېنه کړی خطا

په امید امید یې خلق اامید کړه ... دا یا مرله مکره مشه بی پروا

چه د مرګ په تا چه دې شی خوله ماته ... تر و په ماته خوله به څه کوے ثنا

ویر ژړ لے ار تینے چه وینا را ي ... تا ته وائي که پوهیږے په وینا

هلک نه ئے چه په زور دې څوک تعلیم کا ... هم عاقل یې هم بالغ یې هم دانا

په عمل د نیکو بد و تهم دُکره ... چه په دا کښ دې بهبود وی که په دا

سر د ته په ګریوان کړه ستر ګې رو نړے ... ډیر په پورته پورته مه ځه سرهوا

سرهوا سرهوا مه ځه و آسمان ته ... ته په اصل کښ له زمکے یې پیدا

د عمل په ځائے به دا پوښتنه نه وی ... چه ته زوی یا لمسے یې د فلانا

په خپل ځان ښیګړه وکړه غره مشه ... په ښیګړه دادے او د بابا

هغه نا وه چه په خان بنائسته نه وي — څوک يې څه کوي بنايست د مور د نيا
د اخېره زه د خان ته کرم اے يـاره — د تکبير مشه کړم نوم واخست دا ستا
نوم دا ستا او د بل اخلم چا ته وايم — نه م کار نه م غرض شته په بل چا
کړم ځانته دده غمونو وي په زړه کښے — ما به څه لره کوله دا نشـا

چه د مرګ سختي خوارې د په خوا وي
اے رحمانه ولے نه مرے لا پخوا

هيڅ ثابته نه کړه چا دده دنيا وفا — واره ميني کاندي بيوفا په دا دنيا
هر څوک چه دعوے په دا دنيا کړي د خپلوي — وارد باطل وايي دنيا نه ده د چا
دا ننگ کلال دده سازول و ماتول کا — ويريږي ما د تا غونډې پيدا کړدم فنا
هر سنگ د کوهِ چه څرګند يږي دده دهر — واره ګرځي دي څوک د شاه څوک د ګدا
دا مرغ د هيڅوک نه ږدي دده دنيا ورهګذر ته — ښکار به وکړے نه شي د سيمرغ و د عنقا
هر څوک چه له دده زاني نفس وا ستنګي کا — نه به شي ترلې په زنځير سره هوا
ما ددهٔ کهٔ انتاب دے عاقبت واره خراب دي — کل که هميشه دي هسے نه مترا ابدا

مه دروه مه رحمانه په خلاف د دانايانو
مينه د دنيا پسندلے نه ده هيڅ دانا

ته چه ما ته وايې چه په څه کوے ژړا — نه دې معلوميږي دغه خپل جور و جفا
ته جور و جفا کړے زه جفا کوم دلبره — ستا که دغه نه وه دا به هم نه وه زما
څه بنا دي به کاندي طائفه د عاشقانو — رسم د بتانو که هم دا دي لکه ستا
دا خصلت که ستا دي که هم تل په دغه شاوي — نه را معلوميږي د دردمند د زړه دوا
يو دِ ستا ما نزې شه بل غرور د رقيبانو — وا رسپه وا رم وژني که هغه که دا
هر چه عاشق کا که په قطع افلاطون وي — زه خوبي مجنون ګڼم که نن وي که صبا
سپي هم په عذاب د جدا يي دوزخ لونه دي — زه خو ګوندي ستا د کوڅې سپے شوم په دنيا

هيڅ ئے پکار نه دي رحمان تا غونډي دلبره
دا زما رضا ده باقي هر چه ستا رضا

چه يې نقش په زړه خيال شي دا شنا — صدقه ئے سر و مال شي د آشنا

پس له مرګه به ئې تیغ هسې مخ رونړ وي
چه آشنا په تیغ حلال شي د آشنا

په آسمان د آشنایئ به یې مکان وي
چه زمین غوندې پائمال شي د آشنا

خوشحالي زما د زړه په هغه دم وي
په هردم چه زړه خوشحال شي د آشنا

روح هغه ساعت داخل کړم په تن کښې
چه یې دخل په وصال شي د آشنا

نور د هیڅ قیل و قال مې پکار نه دے
چه تر غوږ مې قیل و قال شي د آشنا

هم هغه یوه ګړئ راباندے کال وي
چه یوه ګړئ محال شي د آشنا

زړغونه ګاندې دانه زما د عشق
چه په زړه مې زړغون خیال شي د آشنا

نه بل څوک زما طبیب بې آشنا شته مې
نه به بل څوک په مثال شي د آشنا

د رحمان نظر په هیڅ باندے نه وي
چه نظر ئې په جمال شي د آشنا

که تنها نام تر ستونې بکته کړم حلوا
صبا خواست کوي له خدایئ د بنوروا

په هیڅ حال کښې دې قرار و صبر نه شي
لیونی کړي د پر حرص و یرے هوا

تمام عمر تر آشنا تر عزیز پور سے
یوے کیدے مختورن کړے سم رسوا

چه په خپلې پردایئ دې پرواه نشته
نور به څه کړي په جهان د چا پروا

چه د نفس د پاره لاس و چا ته نیسي
دا زخمت له خدایه غواړے که دوا

نفس بې شماره عالم پرسیت کوي ته
خدایئ دې نه کا نابینا د چا پیشوا

په روا په ناروا که پوهیږي
د چارپایئ ته څه روا څه ناروا

چارپایان که غوږ و ستر ګے لري څه شو
په معنې کښې نابینا دي ناشنوا

زه رحمن له هغه علم پناه غواړم
چه له دینه له مذهبه وي بیوا

سل خله که وخوري ناصحان جګر زما
بیل به و بله نه کا دردتا د سر زما

صبر ستا په عشق کښې داخبره څه اوزه څوک
نشته د دے چارے توان یو موی قدر زما

ستا له محبته جه روا ته زما دروغ دي
ولے خاورے نه شي په دا لار بستر زما

واره معشوقي د عاشقانو خبرا خلي
بې له تا چه نا اخلي یو دم خبر زما

هیڅ اندوه نشته دے د ستانه جدایئ
نور اندوه به څه دي تر دغه بتر زما

خوب د کور د کلي په نارو زما برهم شه    څه چل دے چه نه شي ستا په زړه اثر زما
کلواره جهان که ما رحمان لره دلبر شي
چرے دے دلبره بي تابل دلبر زما

هسے یادیٔ همیشه مدام زما    چه اورادیٔ په هر صبح و شام زما
هر کلام چه بے د اشله یاده وکړم    تل توبے دي په هغه کلام زما
بے له تا کړم زړه آرام کړم په سل رنګه    نه شي نه شي په هیڅ رنګ آرام زما
ننګ و نام که ستا په مینه له ما درومي    زار شه ترمینے ستا نام و ننګ زما
چه قایم شوم په مقام د عاشقۍ    هیر شه د لته واره بل مقام زما
څو د عشق په خم خانه یٔ داخل نه کړم    پخته نه دي د فه عقل خام زما
ن و وخت دے که م آه و فریاد او رے    خوچه خار رے نه دي هر اندام زما
هزار جام و صراحي دے فلک مات کړه    خو به ګرزي په دا دور جام زما
زۀ رحمان به دا ناکام کوم ترکو مه
دا یه که به حاصل شي کام زما

هر چه چالید ے نه وي یار زما    خیر دے دا که راڅي بد په کار زما
هر هغه چه وي د لبر ز ما لسید لي    نه به کا انشاء الله انکار زما
سر زما درګاه د هغه یار عزیز وي    بے له دے نه نشته بله لار زما
ما بے عشق بل څه خیز نه دے زده کړے    چه څه دي هغه دي واره کار زما
خدایۀ دي یو له بله هیڅوک آزار نه کا    اے دلبره ما خله ته آزار زما
یاره ستا په جدائي او په دیر غم کښ    سیند دا وښکو درومي په رخسار زما
لوے واره کړي همه واره ستا خبرے    ګفت وګو نشته په بل دیار زما
زۀ رحمان به لاف په عشق څه وهمه
خود به خان څرګند کا انتظار زما

سر زما سامان زما زار شه ترجانان زما    زار شه ترجانان زما سر څما سامان زما
زیان څما نقصان زما واره دیار هجر دے    واره دیار هجر دے سر زما نقصان زما
مښک زما زعفران زما ستا د کوڅي خاورے دي    ستا د کوڅي خاورے دي مښک زما زعفران زما

گل زما ریحان زما ستا رخسار و زلف دی    ستا رخسار و زلف دی گل زما ریحان زما
فکر زما توان زما ستا په غم کښې نه رسی    ستا په غم کښې نه رسی فکر زما توان زما
آه زما افغان زما هیڅ په تا اثر نه کا    هیڅ په تا اثر نه کا آه زما افغان زما
زړه زما چشمان زما بے تا هیڅ حال نه لری    بے تا هیڅ حال نه لری زړه زما چشمان زما
دا پیران شیخان زما ستا په غم کښې نه رسی    ستا په غم کښې نه رسی دا پیران شیخان زما
باغ زما بوستان زما بے تا میوه نه نیسی    بے تا میوه نه نیسی باغ زما بوستان زما

وصل هم هجران زما اے رحمانه خیر دے
اے رحمانه خیر دے وصل هم هجران زما

بادشاهی لرے هر یو غلام دِ ستا    دخاصانو پځائے ناست دی عام دِ ستا
پخته کله دی چه لاف د پختګی کا    پختګان دی په دے غم کښې خام دِ ستا
خوم هر وئے نظر په ننګ و نام دے    چا چه نه دی اوریدلے نام دِ ستا
همیشه به له مقامه بے مقام دی    هغه څوک چه لټوی مقام دِ ستا
چه په خپلو وینو ګل غوندِ عرق نه وی    و به نه وینی رخسار ګلفام دِ ستا
صبح و شام به هغو خلقو باندِ یو دی    چه ارزو لری هر صبح و شام دِ ستا
بل کلام یئے په زړه کله اثر کاندے    چه تر غوږ وئی شی شیرین کلام دِ ستا
فراموش کاندِ همه نورے مستی    هر چه نوش کاندِ باده په جام دِ ستا
دام دِ ستا تور و زلفو عالم ګیر دے    تنها نه یم نښتی زه په دام دِ ستا

زه رحمان دعا سلام په هغو وایم
هر چه ما لره راوړی سلام دِ ستا

هر چه ووینی په سترګو روئی دِ ستا    مخ ئے کوږ وی همیشه په سوی دِ ستا
بے دماغ به تر سرو مال فقیر شی    چه ئے تیر شی تر دماغ بوی دِ ستا
که نوئی کړی شه بیځایه خوئی نه کړی    چه په دا رنګ قامت دی لوئی دِ ستا
نوبهار دے عالم سیر د بوستان کاندِ    خدائے و ما و ته بوستان ګړکوی دِ ستا
د عیسی له دمه دم وهلی نه شم    چه خوله بیرته شی په ګفت ګوی دِ ستا
هم به دام له چشمانو رود بهیږی    چه یادیږی م قامت د لجوئی دِ ستا

هميشه يې زړه په اور باندې سپند وي — وهغو ته چه څرګند شي خوی دِ ستا
دلرم لا شه يې مات وي په زړه ګنې — چه يې نقش وي په زړه ابرو دِ ستا
وزغيرو ته يې څه لره راکاږې — ليونيو لره بس دے موی دِ ستا
ډکرنګ وته يې څان پر ييبا سی — چه وزړه وته پر يباسی روی دِ ستا
که ته سل ځله زما يې زه دِ ستا يم — تلوني نه دی له ما جُست وجوی دِ ستا

ګل لښه شه دَ بلبل په آه رحمانه
نه ګوره هيڅ يار په های هوی دِ ستا

خوي که په داشان وی دل آزار ستا — څه بنا دی به کاندی طلبګار ستا
حيف چه اوريدے شي ليدے نه شي — حسن لطافت پری وار ستا
بيا دوباره نه ګوری وصل سته — هر چا چه ليدلے دے رخسار ستا
خدائے زده چه ته يار دکوم بيوه يې — هر طرف ياران دی صد هزار ستا
غايئ د پښو اپښود و موندہ نه شي — هم ؤ عاشقان دی په دربار ستا
بل به هسے نه وی که خدائے کاندی — ماغوندې خاکسار هوا دار ستا
بل ګمان په ما باندې وصه کرو — عمر واړه زه و انتظار ستا
عشق له حسن دے له عشق — ته نګار زما يې زه نګار ستا
ته زما مطلوب زه دِ طالب يم — ته زما طبيب يې زه بيمار ستا
ته که تازه ګل دَ نوبهار يې — زه يم عندليب په لاله زار ستا
جور دے که جفا ده که ستم دی — وارہ م منلی دی يکبار ستا
جور وجفا خوک په بېجا پلوری — زه يم دَ جورو نو خريدار ستا
يو تار که ضايع شي ستا د زلفو — زان به صدقه کرم په هر تار ستا
سل خل ازميښتو نه دِ راوکړل — حيف دی چه لا نه شي اعتبار ستا

ستړيم زه رحمان له هره کاره
اوس م ملا ترلی ده په کار ستا

ته شهاني شکر لبے — ګل رخساره يم غبغبے
په نادرو کښ نادره — په عجيبو کښے عجب

په جمله ؤ معشوقتو کښے بوالعجب يئے منتخب ؛
بے زيورؤ بنائيسته يئے بے ترتيب مرتب
د غه دا دالهی دے بے تلاش بے طلب
آب حيات چه حيات بيا موند ستا د شونډو له سبب
مخ دِ سپين تر سپين صبا دی زلفِ تورے تر تور شب
ستا دَ مخ عرق دانه وه زينت را نيو له کوکب
د بنائيست مخی دِ نښته تر مشرق تر مغرب
د وصال مونده ګران دی مګر فضل شی له رب
چه دَ رب فضل په وشی هغه خلاص شی له غضب
دا دولت د خدائے په دا د دے مونده نه شی له نسب
عشق څه هسے علم نه دے چه حاصل شی له مکتب
مکتب حال دَ مذهب وائی عشق سوا دے له مذهب
د عاشق مذهب هم دا دی چه دم نه وی بے مطلب

ستا دَ حُسن په صفت کښے
رحمان کوټک شه له ادب

په هر زړهٔ چه د يار مينه شی غالبؔ بله مينه يئ هيڅ نه وی مناسبؔ
لوړے دا ره مرتبے به ورته هيڅ شی که خبر شی څوک له هسے مراتبؔ
ليا تت يئ هر وګری تخته نښته عاشقی يوه پا يه ده عجائبؔ
د طالب له کوتاهئ ديره وُکره که هر څو دِ لار کوتاهه ده طالبؔ
عشق څرګنده خزانه ده خوار هغه دی چه څرګنده خزانه شوه تر غائبؔ
غوړ خط د مهرو يا لو تر خط نښته که هزار رنګ کتابونه کړی کاتبؔ
هيڅ يئ مه پوښته له ترصنوله واپيو په هغو چه عاشقی کړه خدائے واجبؔ
عاشقان تر سر و مال يا د ته تير دی خدائے دِ دا طائفه نه کاندِ کاذبؔ

زهٔ رحمن د خپل صاحب په رضا زيست کړم
څه پکار دی دَ بنده بے خپل صاحبؔ

لاس مې د تورې د زلفو په طناب
بيا مې وڼيارې د سترګو په قصاب

هسې آب يې دے د دوه سترګو په تيغ کښ
چه به سر په سر نه لري حساب

چه توسن د فلک زين کاندې له نازه
دا هلال يې په څنګ راشي د رکاب

په درګاه د دريزه کاندې د حُسن
ګند ولي په لاس سپوږمۍ هم آفتاب

چه په ياد کښې مې سره شونډه سپين رخسار دي
له چشما نو مې بهيږي سره شهاب

چه د مخ د آب وتاب ته يې نظر کړم
را ته هيڅ شي د کلونو آب و تاب

چه نسيم يې د زلفينو را پيدا شي
درست مې دوب کاندې په مشک وپه ګلاب

چه د سپي آوازي وا ورم هسې خوښ شم
لکه څوک په نغمه خوښ وي د رباب

ما د مخ يې ګوندې وديم په خوب کښې
بارې چه شي بې ياره خورد و خراب

په غزل کښې خو دوه بيت انتخاب دي
د رحمان تمام غزل دے انتخاب

هر مطرب چه غوږ يې تاو کا د رباب
په دا تاو کښې زما زړه کاندې کباب

چه سامع يې په نغمه په ترانه شم
ديوانه شم ګريوان څيرے مست خراب

هم بې تار هم يې ګفتار هسې اثر کا
چه هيڅوک يې د طاقت لري نه تاب

يو يې ساز بل يې آوازوي دلبنتير
دويم شعر پرے آغاز کړي انتخاب

څلورم يې يو ساقي له سنګ کنيني
چه مخ يې نه آفتاب وي نه مهتاب

دا څلور واړه نغني په څلور کنجه
او پنځم يې صراحي د ميوک ناب

شپږم وخت د نوبهار او روم ګرانې وي
اتم شغل د کتاب نهم شراب

چه دا هم دا آفتونه سره يو تول شي
ترو څوک څه رنګ غني کاندې اجتناب

چه دا هسې دلبران پرے اثر نه کا
يا به ديو يا به ديوار وي يا دواب

ما څو ګنډ به شي په پرهيز د پرهيزګار و
که تا درشي په شاهد و په شراب

زه رحمن له ريا زهده پناه غواړم
د ريا زهد عذاب دے هم عتاب

ورځ د تيره په شرمۍ کړه شپه له خوابَ
خدائے به که ياد دي خانه خرابَ

په شتاب شتاب د تنه دی که پوهيږې
غافل مه شه درے عمر له شتابَ

دلته دم او قدم دواړه په حساب دي ... پل غلط له لاره مه ږده بې حسابه
راستو لے خدائے حساب دے په کتاب کښ ... خبر زده کړه له حساب او له کتابه
ته و خپلو نیکو بدو ته نظر کړه ... چه بدي و خوریږه ده له ثوابه
په هغه جهان به څنګه جواب وکړے ... چه په دے جهان عاجز یې له جوابه
عاقبت به تور و خاورو لړه درومي ... ځان به څوخنډے په ګټه له ترابه
دکاغذ په کشتۍ سیل به کړے تر کوم ... داکشتۍ به ډوبه کا ندي غرقابه
چه افتاب یو نیزه شي بیا به څه کړے ... اوس چه سوري له ورتښتې له افتابه

په آزاره چا راضي مه شه رحمانه
که خلاصي په قیامت غواړے له عذابه

په ورځ ناست یې بے مطلبه ... په شپه خوب کړے بے ادبه
لاس دي و خاته له دواړو ... هم له روز هم له شبه
نه دلے شوے نه هورے شوے ... ترمنځ ډوب شوے مذبذبه
عبادت دي په ریا شه ... په مذهب کښ بد مذهبه
مدام بند یې په سبب کښے ... بے خبر له مسببه
داره تښتے شوقي شار بي ... خبر نه شوے له مطلبه
ته اوده وریاندي سور یې ... اوس دي ځون کاږي جلبه
تن دي تش په توره وسره ... اوس دي داغ کړه بے منصبه
د راکب چه واک پردي شي ... سود یې څه وي له مرکبه
له ږرو ندیو سره ناست یې ... له مرده ږه مرکبه
هلک لوے شوے په اربو کښ ... اوبه نه پیژنې کبه
لکه کا نړے یا کو درے ... په دریاب کښ تشنه لبه
نا اګاه ځان اګاه بولے ... داخبره ده عجیبه
مراد له زهده معرفت دے ... نه تش ځان ورل اقربه

د رحمن شراب له عشق
نه انګور نه له عنبه

زۀ په سل رنګ راغب　　　ته په سل رنګه غایب

دا په څه رنګ شی دلبر　　　چه زۀ مست یم ته تایب

که له جوره د فریاد کړم　　　دا هم نۀ دی مناسب

که څۀ دایم نۀ یم رسی　　　زۀ مغلوب یم ته غالب

څه سیالی برابری ده　　　د مطلوب او د طالب

دا ستا مهر محبت کړه　　　خدایه په ما باندې واجب

درد و غم د همره نۀ دے　　　چه یې وکښم په کاتب

جدائي ده ډیره سخته　　　د ارواح او د قالب

چه مجنون په زنګدن شه　　　زۀ یې پریښودم نایب

وصیت یې راته وکړه　　　په څو رنګه عجائب

چه روزی دې شه رحمان

زما داره مراتب

که د عقل چه اثر لری وسرت　　　لاس په سر مشه د هرکیږه ودرت

په نظره هغو خاوره سره زر کیږی　　　هر چه نه لری نظر و سیم و زرت

به منت جام د زهر و څښلی نشۀ دی　　　له هغه چه منت بار شی د کوثرت

لیوسف له حال زده کړه دغه پَر　　　دا یه حال د زمانې و برادرت

دے نلک و چاته هیڅ بخښلی نو دی　　　چه ئے نه دی را پیرودی څنې بیرت

دخروار دعوای یې وکښړه ممکنه　　　که رتی یا جودانه په یې وی درت

که له خدایې دې د خلقو ته مخ شی　　　له فردوس به دې مخ شی وسقرت

همیشه به در په در ګرزی رستلی　　　دا ستوګنه ځایه به بیابانه مومی چرت

دوے سست بدن منت په رحمان باندے

چه له ځنګله دره تلی نه شی بل درت

نظر کړم د خوبانو و رخسارت　　　آئینه غونډو حیران شم ودی کارت

له دا شت یې رییار پوښتیدی نه شم　　　خدایه زده څه به یې ویلی دی رییارت

خلوتیان لکه برده پکښ خرڅیږی　　　غږیږے نه خیژی د حسن و بازارت

تر چې ما پوښتنے د يار له حقيقت   څوک د يار خبرے کاندې د اغيار ت
درد و غم د عاشقئ غمځره منه دے   چه يې عقل د چا رسي و مقدار ت
زه د يار چه خپل غمونه سره شمار کړه   يار و ما ته حيرانيږي زه د يار ت

رحمن هسے وزګار چیرے دے له عشق
چه غمونه ونيسي ناصح غوندې وزګار ت

ما د دهر غم وهلي دی په لت   د پيالي د صراحي له برکت
که اوبه دی د حيا تو په تور تم کښ   ساده رو يو و ما را کړه بے ظلمت
هغه يار چه و ما جام د ميو را کړه   د دښمنو بيخ يې وښے بے شدت
بيخو دي يې د دنيا له غمه خلاص کړ   لا زم بيا مونده بيرون له شش جهت
د دښمن په دښمنئ يې خندا کيږي   لکه شمع د مقراض له خصومت
بے خيره يې کل په خير د د شمشير لي   د زمري په خوله کښ ناست يم په فراغت
مرحبت دے تر هغه چه څوک بې پټ وي   په ياري کښ دِ څوک نه کا خدائے بې پټ
داسنې چه په اور سوزي مراد يې داوي   زه په اور کښ سوے نه يم نه بے پټ
خدائے هاله د سړي ياد شي چه دردمند شي   کمه نه ده دردمندي تر عبادت

زه رحمن په سل خلقو د زلفو بند يم
لا د پاسه سور پېژوان شه بله ننت

ستا په مخکښ چه حساب د جمال نشت   ځکه ما څخه د صبر مجال نشت
ته د سرو د مال ديره په ما مه کړه   ديره ما څخه د سرو د مال نشت
زه په دا سبب له ويره سره رسين دم   چه ستا ويره کښ ثواب دے وبال نشت
که رحم د يره چاره يو ساعت کړے   د هغے چاره اميد يم په کمال نشته
د شهيد و حال ته ګوره حال يې څه شو   بے تا هسے زما حال دے بل حال نشت
روښنائي يې د چشمانو ستا ديدن دے   په ډکو دکښ بل چراغ و مشال نشت
په جونيان زما د سترګو سر و ته بيے   په دا نهر باندي بل څه نهال نشت
مخ و بے خط و بے خال هسے زيب کا   چه يې هيڅ حاجت په خط و په خال نشت
محال مخ که راته وګورے دلبره   په کاته کښ دِ ثواب دے وبال نشت

د آفتاب په مخ کښې هره ورځ زوال دے      ستا د حسن په آفتاب کښې زوال نشته

تا په یاد کښې رحمان هسې مشغول دے

چې په زړه کښې یې هیڅ غم د وصال نشته

مخ ته که دې نمر وایم د نمر زلف تار تار نشته      سرو که ستا قد بولم د سرو دیون رفتار نشته

هر څوک چې د ستا د آتشین رخسار تنکل دا یې      پوچ دا یې دا دے په مخکښې د ترو د کلزار نشته

ماچه غنچه په غوږ د ستا د درد د سپیو وا دید      هسې رنګ بلبله په چمن کښې په ګفتار نشته

ستا دیدن هغه کا چې یې سر په تنه پاس نه وی      ولې چه د رب د ښتن حور و وته لار نشته

یا ربه د رقیب په لوری خدا یې نه رحمانه سم

ولې چې د پېښور بنتو سره خه کار نشته

د وصال شپه مې بدله په بېلتون شوه الغیاث      د قیامت خوارۍ را پېښه په ژوندون شوه الغیاث

مالا طمع د وصال د نعمتونو تیر کوله      ناګهان پیاله نکوړه د ګردون شوه الغیاث

هغه چاره چه مې په لاس د زړه پرهونو پرهیده      ادس چه پوه شوم له اختیاره مې بېرون شوه الغیاث

د وصال په طمع طرق جدایۍ شه را په غاړه      هغه طمع چه زمانه اوس طاعون شوه الغیاث

په حکمت په عقل پیچه د عشق څوک اخته نه شی      په دا کار کښې ماته ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمانه د یار وصال په آسانۍ موندلے نه دے

زر د ردۍ مې سرخرویۍ په جګر خون شوه الغیاث

یار یاری را سره نه کړه الغیاث      نه یې ترس شی نه یې کړکه الغیاث

هر و مال دا په زما و دل آرامته      نه از ریزی په کنجکه الغیاث

په حملو حملو مې زړه وری نه پوهیږم      آزریدی ده که خنتکه الغیاث

خوچه را کا زی چوګان په مخ د زلفو      ګډی زما دا خراب زړه که الغیاث

بېلتانه یې پېښور راته تنور کړو      له خیبره ترا تښکه الغیاث

هیڅ سبب یې موند نه شی جفا کا ندی      نو پوهیږم چه به څه که الغیاث

په اخلاص او په راستۍ ورته ولاړ یم      یار جفا هم په څه که الغیاث

سل خبره که له صدق ورته وکړم      یار یوه راسره نه که الغیاث

چه مې دینی له رقیب سره خاندی      په ژړا مې لیمه سره که الغیاث

زه رحمٰن مدام مرید یم د یار په رضا درومم
یار په خپله رضا تله کا الغیاث

ته خو زده زما د زړه له احتیاج
نور هم څه پوښتې چه څه غواړې محتاج

د طالب د مطلوب راز به ما د روښن و د
که ته نه وې خبردار له دې رواج

یار که یار ته حال په خوله نه وایي څه شو
د حکیم ته پټ څرګند وي له مزاج

که زما له حال ما پوښتې حال دا دې
چه بې تا م ورځ تیاره ده تر شپې داج

که په سلوکښې یو خواست د چا قبلیږي
خدایه د هیڅوک د مځور نه کا بې علاج

په رحمٰن بلا پېښه که زهیر ېږي
ته مشغول اوسې له خپل تخت و تاراج

په طلب د ماهرویانو سرګردان دې زما روح
لکه باد د ګل په بوی پسې پرېشان دې زما روح

ستا د حسن د افتاب ته چه سپاري ځان شبنم وي
لکه صبح د ژړا ځایه خندان دې زما روح

چه هم ستا د جمال عکس یې لیدلی په خپل ځانکښ
هم په دا د آیینې په شان حیران دې زما روح

ستا د خط د ابیخې له برکت زما ځان
همیشه لکه طوطي همې ګویان دې زما روح

لکه رنګ د میوناسو چه لیده شي په شیښه کښ
همې رنګ په ضعیف تنکښ نمایان دې زما روح

منتظر یم د وصل د ګلستان ته تل تر ستا له
سر تر پایې شبنم په شان چشمان دې زما روح

چه حاصل یم له حسن رونق شو په طلب کښ
شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان دې روح

ستا په زلفو په رخسار پسې رحمٰن شه بې وطن
مسافر د هندوستان و خراسان دې زما روح

ستا د وصال دې را بخښلی زما روح
ستا هجران دې را پرېښودلی زما روح

ستا په مخ پسې یم درست وجود را هم شو
له صورت دې و تللی زما روح

چه هر ګز ملک الموت پرنه پوهیږي
همې شان دې تا د کښلی زما روح

ځان یې همې ستا په مینه پسې ورک کړه
چه هیچا نه دې موندلی زما روح

که وی هم به تا څخه وي که خدای کا ندي
نه دی بلي خوا ته تللی زما روح

بلبل نه دی دا چه الوزي پسې ګلو
ستا په لوري الوتلی زما روح

چه یې نه خاو یې کر صورت د ستا په در کښ
سر تر غړ څ دې وکښلی زما روح

تږيږه پېږنې چه څه دي پاڅه نه دي      نور چاند دي پېژندلے زما روح

زه رحمٰن له خپله یاره خبر نه یم
چه یې څه شان دے کوتلی زما روح

کله شولا کله خریدار یم ستا د مخ      تیر نه سر و مال په بازار یم ستا د مخ

بے دا ستا له مخ نور یم هیڅ په عکس نشته      هسے رنګ تلی په ناتار یم ستا د مخ

هیڅ په ستر کو نه وینم دا خپل صورت چه کوم څه      دوب تر هسے حده په انوار یم ستا د مخ

درد د آه د کا بزم بهانه د تماکو کړم      سوے لو غړن مدام په نار یم ستا د مخ

نور ذکر ي واره هسکی د دنیا کار کړه      زه همیشه غرق په انتظار یم ستا د مخ

شکر چه مے خلاص کړم د نورو خلقو له منته      سر په سجدهٔ اینی منت بار یم ستا د مخ

هره خوا چه درومم زه رحمٰن د زره په سیل
بل مطلب مے نشته طلبګار یم ستا د مخ

ما سحر صبا لیدلے وه د چپا مخ      چه رم درسته د رخ ګو نه لیدهٔ دا ستا مخ

دا خو مخ زما و تا و ته خدائے هیڅ کړه      که نه دے یو آشنا کوری د آشنا مخ

د یر مجنونه د جفا د راڅرګند کړه      لا به کله را څرګند کړی د وفا مخ

څو د مرګ په تماچه اونښتے نه دي      او نښتونی تا مه ګڼه زما مخ

زه په تا پسے راغلی په دا مخ یم      که ته نه کوے ما به څه کول په دا مخ

ما به څه لره په تا پسے ژړا کړه      که مونده شره بل په دا سے زیبا مخ

د رقیب طمع مے نه وه شا په در کښے      په جنت کښ دے راونیود د بلا مخ

زه به څرنګ د رقیب و مخ ته ګورم      کله اهل سنت ګوری د ترسا مخ

د چکنا چکنی بیلتون په نیمه شپه ری      ستا زما په حال ښکاره شه د صبا مخ

رحمٰن ستا په مخ دا ورانه د دنیا ګوری
خدائے دې تا ور څرګند مه کړه د دنیا مخ

ولے تللی یې له ما مدام په څ      ترهیدلے یې هر صبح و شام په څ

زه هر صبح و شام دعا کوم و تا ته      ته و ما ته کوے دشنام په څ

همیشه لکه وحشی په وحشت کړې      یو ساعت را سره نه یې دام په څ

همیشه راځي دردمي مخ په وړاندې … چه عمر بیرته نه بندي کام په ځ
راته وایه نه به هم هغه کومه … غمازانو راته بخښي انعام په ځ
لږ پرهیز کړه له رقیب خدای دپاره … کړه دي سره حلال حرام په ځ
رحمٰن ستا په مخ به څنګه هم مئین دی
بېهوده دې ورته کېښو دام په ځ

ولې نه ګوره وما ته سم په ځ … زیاتوي دغم زده د غم په ځ
ستا په مخ کښ چه ماوینې عالم ناري … ژړه وي راسره نور عالم په ځ
په مطلب دې دسره شو نه دنه پوهیږم … چه دې وینې دزړه ښخي هر دم په ځ
ستمګاره چه ستم کاندي بېها نه کا … ته په ما باندې کوې ستم په ځ
مه کړه خدایه چه څوک یار خرم وي … زه به او سم بې تا خوش حرم په ځ
لږ یې د پوښته چه حال دې دزړه څنګه دی … د رحمٰن له سترګو ښاځي نم په ځ
ورته حیله برندو سترګو ته دې وایه … چه وروژني یم تلم تلم په ځ
رحمٰن خود پخپله کرم یم چه مئین شوم
ولې نور عالم یم بولي کرم په ځ

که څه وایم له هجرانه وایم ځ … له دې درده بې درمانه وایم ځ
توان د دم وهلو نه لرم د یار سته … چه توان نه لرم بې توانه وایم ځ
زه یې ورویم له ځانه خبر نه یم … چه خبر نه یم له ځانه وایم ځ
د څنډ زړه له حاله هیڅ راویل نه شي … له بې نامه بې نشانه وایم ځ
د خلق راته هیچا نه دې بیان کړه … تر دې به زه له بې بیانه وایم ځ
د خپل یار له غم درست په اوښکو ډوب یم … له دې هسې رنګ طوفانه وایم ځ
زه چه پروت یم د هجران په تناره کښ … د وصال له ګلستان وایم ځ
سرومال دسري لوټ کړي زړه یې یوسي … له دې هسې دلستان وایم ځ
زاغان بولي بلبلان شړي له باغ … د دې دهر له باغبانه وایم ځ
هر چه وایم ترهسه داړه بهتر دی
زه رحمٰن به له جانان وایم ځ

نو دې هسې غلبه شه په ما باندې
چه مې ځایه نه شي د ننه نږدې باندې

له زګیرو دونه مې نور خلق په عذاب شو
تل د وچو له کبله سوزي تاندې

زه د ستا په غم کښې شمع غوندې ژړېږم
ته زما په غم کښې صبح غوندې خاندې

زړه مې ستا په لوري هسې اوېزان دے
لکه زلفې دې په مخ دي اوېزاندې

ما دے ستا د اندېښنو په اور کښې سوي
د دنیا اندېښنې دا ره لکه سپاندې

دا دستو زړه دے چه لوے غم په سپک ورشي
نور غمونه یې همه ښي تر پښو لاندې

هر چه ما په نصیحت له تا جار باسي
بیا دې ستا په لوري در دومي له ما وراندې

سره لمبه کوره چه خس په کونج د کي!
مخ د یار په رحمن هسې چاپے کاندې

ښه خو که خاموش یم ستا د عشق له آه سرد
ستا زما له مینې خلق دا ره خبر د

هیڅوک دې په خوله د عاشقۍ لاف نه کړي
که هم پتېږي وچې شونډې کونه زړ د

اهل د دنیا دا ره نامرد دي رنګ ورک شه
خدای دې ملاقات له هیچا مه کاله نامرد

که بې دردا نوله زړه د چا وردرومي
زه به صدقه کړم سل بې درد له اهل درد

بې د استاد عشق د شهیدانو له خاک دان
که زر غوبېږي سر لاله له هغه ګرد

یو خوشحال یو کم سل خټک نور په طبیعت کښې
څار شه د رحمن سره بې له یوه فرد

که زما مینه په تا ده خطا نه د
که بې تا ده ناروا ده روا نه د

څوک چه بې د استاله مخه بل ته ګوري
آئینه یې نا صفا ده صفا نه د

هر عاشق چه په چل یار پسې ژړا که
دا ژړا دا ره خندا ده ژړا نه د

د دنیا په تماشه چه څوک نازېږي
خوم نن یې تماشه ده صبا نه د

که ته سل ځله له ما سره جفا کړې
ستا جفا دا ره وفا ده جفا نه د

هغه تیر شو چه مې مینه په غلا غلا کړه
اوس په ورست جهان رسوا ده په غلا نه د

معشوقه که د خپل سر په بها مومي
د رحمن وته ډېر یا ده بها نه د

له اغیار سره خندا اشنا پکار نه د
له اغیار سره سودا اشنا پکار نه د

سل یاری دَ یوه یار د یاره کیږي
آشنائي د هر آشنا خه پکار نه دَ

هر بلبل به دِ ثنا کاکه ته ګل شې
پخپل ځان خپله ثنا خه پکار نه دَ

عشق د بوئې پر خیر به پټه خوله څرګندوي
په دا چاروکښې غوغا خه پکار نه دَ

د عشق درد واره عاشق لره راحت دے
د دے هسے رنځ دوا خه پکار نه دَ

بد له بد وسره بویه نیک له نیکو
دَ جفا په ځائے وفا خه پکار نه دَ

عاشقي حرص وهوا دی سره لرے
د بیمار په ځان هوا خه پکار نه دَ

عاشقي یو نادر کار دے په جهان کښے
ولے بے خدائي سودا خه پکار نه دَ

که مې کړم هم ئې هیڅ نه کړم سوګند دے
وابستګي د دے دنیا خه پکار نه دَ

دَ دنیا مینه بے کاره اندیښے شي
چه م ولیده زنبتیا خه پکار نه دَ

که رحمن په جهان وېرپایم دِ لبره
زندګي زمانه تا خه پکار نه دَ

ګوره بیا به ښوک ادا کړه په زړهٔ غندَ
چه دا هسے مسته دروي مخ مر بند

ته چه ګل دَ آشنائي له مباغَ غوارے
خبر زده کړه دَ هجران له خاره خند

مارستم دَ زمانے ولیده په سترګو
چه دیار له جوره ژاړي لکه ګند

طالبان که مرور دي هم په خلا دي
بے مطلوبه دَ چا نه رحمي دا هند

د عاشق دلاغري سبب هم دا دے
چه نرته د معشوق شره په زړهٔ تند

زهٔ به حورے دَ جنت بے یاره څه کړم
خدایه دِ سرو د چا نه کاندِ ارهند

سخت ساعت دَ بیلتانه به م هیر نه شي
که را له که بنۍ دَ تور لحد ګورهند

زهٔ رحمن دَ هغه حُسن ثنا خوان یم
چه جرګه دَ عاشقانو وي پرے پسند

چه م یار ولید په سینه دَ اغیاز ګړه
له غیرته م لیمه شوه په خونبار کړه

د غه حوډَ بلبلا نو په جانب مے
خدائي دِ نه کا منکیرک به لاله زار کړه

زهٔ په وصل کښې هجران مے پنځمه
لکه ښوک چه خالي لاس دي په بازار کړه

په امید دَ زلفو ونیم په دام کښې
رهیلي دم ساده دل په هندو یار کړه

د دیدن په ګدائي کښې م ننګ نه شي
د رو نیر کړیم دَ بتانو پد بازار کړه

درنا د ګلو پاڼرې پکښې نښته    کاشکې به وې د دې دهر په ګلزار کښې

زړه مې بې له خپل نګاره ارام نه کا    که هر څو ګرځم په نقش په نګار کښې

که پخوا تر اشنا في بیلتون لیده شوې    هیڅ بنده د خدای به نه وه په دا کار کښې

زه رحمن به د فردوس له غمه خلاص کړم

چه به کلی په کوڅه شرم د خپل یار کښې!

غم خواری دا هسې چرې دی غم خور یې    چه به ما د لته کښې ناست لرې ته دوریې

هغه خدای چه ته ستا مخ بله لمبه کړه    دا لمبه د کړه زما په ګوګل پورې

هم هغه دې زما تورلیمه یې سره کړه    چه ته ستا لاسونه سره کړه سترګې تورې

غل خو غلا د سرو مال په توره شپه کړه    ته په ورځ زما د سرو د مال چوریې

اصیل نه دی چه پیروده نه پلور لې    ته اصیل په دیدن پیرې هم د پلوریې

دا کوم رنګ د اشنایی او د ورورۍ دی    چه زه ستا د مخ ننداکرم ته مې زوریې

درغلی په سل عمرو خدای اخته کړه    زه به ولې له تا زار کوم که ګوریې

زه رتا وته د ستا له جوره ژړا کړم    ته را واخلې سل ګلې نا درې نوریې

د رحمن په عاشقۍ به آفرین کړې

که لږ مخ په آئینه کړې ځان د ګوریې

په هر ځای چه ستا ښائی بښیره کړي    خرمهرې شي هلته د رو مرغلرې

د هغو سترګو به اوښکې دی ګلرنګې    هر چه ستا په ګل رخسار وي منتظرې

هغه کله د ناصح خبرې اوري    هر چه واوري ستا خوږې خوږې خبرې

مرور کاندې عاشق له جمله خلقو    معشوقې له هیڅ ما شه مروریې

په [illegible] عشق کښې سره مړ کا هم ژوندې کا    طایفې دی د خوبانو سحر ګرې

زه ځان ډوب کړم بې تا په خپلو وینو    کوم ډوب که څوک په شهد و په شکر

لړ لړ به غم دې واړه را نژدې کړې    چه له مخ دې حجاب کړه دا ته لرې

چه مې نوم دا ستا د زلفو په خوله واخست    را پېښې شوې د بلا تورې لښکرې

هیڅ په حق د حق دا رانو نه کړو هیڅ [illegible]    همیشه زما د زړه په [illegible] و منه

زما ستا مینه څرګنده په جهان ده    ولې دا رنګه څرګنده [illegible] اهې

زه چه ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم          د رقیب کره هم ډول دی هم سرندې

د رحمٰن شعر به ولې نادر نه وي

چه ثنا کاندې د تا غوندې نادر

ستا په عشق کښې د روغځن یم سر تر سر          چه له غمه د ژوندي کوزم دلبر

زه به ستا له غمه کله شو لا مړ ودم          یاری دم د خدای په لاس مه نازپروره

شام سحر م دغه ستا زلف رخسار دی          نور م مه پوښتنه له شام و له سحر

چه خبر نه په وصال او په هجران شم          خبر نه یم له فردوس له سقر

هسې بې سروسامان د هیڅوک نه شي          لکه زه چه بې سامانه یم بې سره

یو هنر م منظور ستا په هنر نه شه          که زه وکړم ستا په عشق کښې سل هنره

هیڅ اثر رحمان او ښکې په یار نه کړه

خدایه دا ربڼکې د چا نه کا بې اثره

نه رسیږی ستا و حسن و ته حوره          څه به رسي و میرمن و ته مزدوره

ستا تر قد تر قامت نه رسیږی          که نښتر که سپاری دی که کجوره

تر قامت پوره د سرو ده سرکوزه          تر رخسار پوره د شمع ده بې نوره

هر سړې چه د حسن ته نظر کړه          خاپیړۍ ئې په نظر دی نامنظوره

چه تا میځ د خپلو شونډو ور په خوله کړه          طائفه د د صوفیانو کړه مخموره

اوس ته وایه چه به څه رنګ د رستا یم          زه خو ستا په مینه لاړم تر شعوره

دا جذبه د عاشقۍ نه ده نور څه ده          ګنې کله څوک وتی شي له دستوره

اوس به زه د شب خیزۍ څه منت کړم          چه چهره د کړه په خوب کښې را حضوره

چه په ننګ و په ناموس تر لور کم وی          صدقه شه ناقابله زوی تر لوره

ننګیالی تربه ښه دی ارکه نه وي          ننګیالۍ تر له هم ښه ده له تربوره

خوب رولي بې دلبرۍ څه پکار نه ده          لکه ونه بې میږه پانړه د کهوره

که د غلوزی لباس وکا غزا وشوره          شهد نه دی چا موندلی له زنبوره

په رحمان د ښایسته وقد د ډیر وی

د طبیب له قدره چا زده بې رنځوره

پورته بد را ښکاره ښکته نه — ښکته پورته واړه مخ دے د دلبر
نمر سپوږمۍ مې په پالنګ د پاسه رغړي — چه مې یار په بالښت وُ تکوی سر
په سرو سپینو درو لعلو یې غوږ ډک شي — چه مې غوږ کاندي د اوښکو په دردر
چه د رویم په مخ مې اوښکې دردې — لکه مرم چه په افتاب شي سبا بر
یل مذکور د سخنګویو ستړګو نه زده — بې له دے ذکره چه الله اکبر
په شرابو کښ خوند نشته د شکر د — د یار شونډے هم شراب دي هم شکر
که سل خله پټ تر شونډو ولاندي خاندي — نه پټیږي آب د لعل و د ګوهر
د اخر مالره خداے را کړه ګنزه نشته — هسے بت په بت خانه کښ آذر
پس له دے به یې په نام د ملک بولم — هم په دا چه نشته دا رنګ بشر

که رحمٰن صاحب نظر باله شي بنائي
چه مدام د یار مخ لري نظر

تل به نه وي شګفته ګلزار د عمر — نه به جوړ ري همیشه بانار د عمر
که سیند دا باسین په غورزي دروي — هسے یون دے په تلوار تلوار د عمر
لکه برق چه مخ څرګند کاندي بیا نه وي — هسے تیز دے بے سکون رفتار د عمر
سرکشي لري تر هسے حده پورے — چه نیوے نه شي هیڅوک مهار د عمر
چه سمند یې نه جلب لري نه واګے — خود بر پر یوزي عاقبت شهسوار د عمر
په ساعت د سلو کالو یاري پرے کا — بیوفا په هسے رنګ دے یار د عمر
خپل صورت به د حباب په سترګو ګوري — که شمرک وکاندي په زړه کښ شمار د عمر
نه له کوره چرته ځم نه سفر کړم — بے سفره مې غورځیږي لار د عمر
عاقبت به د اجل په مقراض غوڅ شي — پیوسته به مدام نه وي تار د عمر

بیائي دا ربه داد نیا نشته رحمانه
په هر چا باندي چه تیر شي دا ر د عمر

چه په وخت د زنکدن وکاږي ږ سیه — ترون دلے هسے زنکنے بے تدبیر
هر سړے چه کان د غم په مکښے ویني — له هغه غمه لا نه ګرزي دستګیر
چه صبا ارمانوي پند د پیرانو — ولے نن د پیر طلب نه کړے بي پیره

د یار یار به دِ ځانه شریک په زړهٔ نیسی — یا دَ غیر چه لرے نهٔ کړی له ضمیر
چه دَ توک په طلب ګرزی زهیر بیزی — نقیری دا هسے چرے ده نقیر
دغه غم دِ خدایه بدل کړه په بنا دیٔ — زهیر شے په آشنا پسے زهیر
هر سړے دَ هغه مخ په رڼا ګرزی — چه یې خونه دَ خاطر وی پر منیر
همیشه پراته په اور او په او بو وی — عاشقان دلعلو لبو له تاثیر
که هر څو ښائسته ویردی په جهان کښے — وهر چا ته خپل آشنا دے بے نظیر

زهٔ رحمٰن دَ آزادیٔ په طلب ګرزم
یاری نهٔ دَ تورو زلفو له زنځیر

زهٔ تیر شوے یم ترسر — په طلب دَ خپل دلبر
څوږ وندے یم په دنیا کښې — پرے نهٔ ږدم دغه در
دآشنا پسے طلب ګرزم — وچې شونډے لیمه تر
یو قدم مې دے په بحر — بل قدم مې دے په بر
دواړه لاس مې دی نیولی — هم په شام هم په سحر
مناجات مې دی وخدائ ته — که یې ووینم بشر
همیشه له خپله بخته — ګیله مند یم مرور
چه په ما ئے پیرزونه کړه — دخوبانو یو نظر
هم یې ونه ښوده ما ته — بے له عشق بل هنر
عاشقی مې رب رسوا کړه — په جهان کښې لکه نمر
نصیحت را باندې نهٔ کا — لکه موی هسې اثر
وهسے غوږ پاسه ناصحه — کوتاه وایم مختصر
په صحابو مې دِ سوګند دی — هم په روح دَ پیغمبر
چه دولت مې بیرته نشته — چه عالم شه را خبر
تر مینې به یې ځار کړم — که مې سیم دی که مې زر
که مې سیم دی که مې زر دی — که مې دُر که مې ګوهر
زهٔ رحمٰن هر څه تیر یم — تیر به نهٔ شم تر دلبر

بې له مرګ که څوک آرت غواړي خپل کور — که حق د ایمه همره آرت یې بویه کور
رحمان زیات که چارګه پکار نه ده — ځان په لویښت کړه چه یې څوده اوږد کور
په جامه د چاکوتاه شي یا اوږده شي — که دکاره شي هنرمند لره پیغور
هر سړے چه په حساب کښې تیر و بیر شي — ملامت پرے دا به کیږي لوړ په لوړ
په لائق د ملامت او د تهمت شي — ځائے لري که بے غیرت شي هم سر کور
په عزت حرمت یے نه وي په جهان کښې — هغه هسے ژوندون او سوزه په اور
په عزت سړے به خوښ د هیچا نه وي — مګر هسے بې عزت وي ځني نور
خپل مجلس ئې تر جمله مجلس خوښ وي — په هر ځائے چه سره جمع شي خسور
هم جنس د خپل هم جنس سره جوړ وي — زیب کا هره کښید په خپل انځور
نابینا په خپله سیمه کښې بینا وي — بینانان په پردي ملک شي کرو کور
درست صورت په یوه نوک په دردمند شي — وران شي ښهره یوه سري په تور
په یو غاښ په خوله کښې زوړند شي یا ورزي — درسته خوله پرے بد نما شي هر ګور
یو سړے چه په کورمه کښې د چا بند شي — داره بد شي که ښځه وي که څلور
بدکرداره زوی پیدا مه شه له موره — جبطه کاندي ناموس د پلار و مور
هر څوک خپله خوشنودي له خدائے غواړي — یاري نه شي دغه کار په زور زور
نه ئې په خپل قدرت څوک لوئے څوک هلاک کړه — نه چه هر یو ښهره دیلي شه یا لاهور
د چا تاج زرین په سر تر ملا خنجر وي — د چا پښې په سر په ملا تو ښلي لور
څوک په اس د پاسه سور وي توغ دوراندي — څوک بزیر کلي ګرزا وه شي په خر سور
د ښکو پوررنه هر څوک وبله کاندي — بخت هیچا ورکړے نه دے چاله پور

اے رحمانه د خدائے نوم به چا وانخست
که د خدائے چارے په پلار شوے یا په مور

په بزرګۍ د هغه پاک پروردګار — موقوف مه شه په سړي د سړي کار
په سړي چه د سړي غرض موقوف شي — نور بې آب و بې حرمت شي نور روزګار
احتیاج هسے بلا ده په جهان کښې — چه پلار زدي کا زوئ د زوئ پلار
په ساعت کښې ګدا شاه کا شاه ګدا کا — دا فلک ځکه بالله شي کج رفتار

چه همه عمر یې تاج دی په سر ایښی    درپېر کاندې کېږدۍ د خس و خار
چه تا در نه په درم و نه دینار دي    په هغو باندې ګنجونه کا اشبار

زمانې د رحمٰن زړه دے کباب کړے
له احوال یې څوک نه دی خبردار

وخت د نوبهار دے زه جدا له خپله یاره    دریغ دریغ دریغ چه بې یاره شی بهار
اور د خوږ د زړه د نو چه دغه په سر بلېږي    څنې لوخړې خېژي له نښترو له چنار
داغه عاجزي مې چه زه کښم په کاغذ باندې    راشه رو یرېږه له عاشقو دل آزار
داغه ونجه نه دي چه بهېږي له چشمانو    وینې دي بهېږي د زړګوټي له پرهار
زخم مې هسې سخت دے هر زمان په ما زیاتېږي    راشه اے طبیب کوندې مرهم د رب د پاره
غرونه دي نړېږي چه په حال زما خبرېږي    بیند داونګو دروي چه راغلی له کهسار
نور غم نه دی واره دا زاري د بېلتانه دي    راشه که یې اورې د رباب له هره تار

زه یو خوار و زار یم رحمٰن په عاشقۍ کښې
خپل دی که پردی دی راته نو ګوري له غاره

باره د تره هاله کښت زراعت کړه    تقوي دا رشه هاله طمع د جنت کړه
عاقلان په وړاندې ځي په روستو ګوري    په دنیا کښې سرانجام د آخرت کړه
هم دلاسه کار هر ګوره دیر مشکل دے    څو لا نه یې غریب زېرمه د غربت کړه
چه نور خلق ملامت در باندې وایي    لا ښځوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړه
چه عقبیٰ ته د دنیا په اجر مري    څو هم دا عمارت هلته عمارت کړه
څو به ګوري د قیامت ورځو ستپوته    څو هم دا جهان په ځان باندې قیامت کړه
چه نیکي بدي په تله کښې متلل شي    خود په خپله تله وا خله عدالت کړه
که ښکر د حرص هوا در باندې زور شي    سر دننه په قلعه د صدا تت کړه
دا به نه شي چه ستا ګټه او د حق مخ وي    که حق غواړې نو هم مخ په حقیقت کړه
هغه زړه چه عرش الله دی ګوره ګوم دی    څو ویران شي د جمله زړونو خدمت کړه
وړاندې هم واړه ستا په خیر سري ګو    نو هم پاڅه د هغو په خیر همت کړه
د دنیا چاره همه واړه فاني دي    یاري پورته شه یو بل زړګ حکمت کړه

په طبیب د عاشقانو دارو نه شي — درد به بله خوا دارو د ځپل زحمت کړي

څو دې حق موندلی نه دی مه جار ووزه — په دا مرشد دا جهان واړه ولت پټ کړي

اے رحمانه اول ته نصیحت واخله

دغه پس بیا و بل ته نصیحت کړي

چه مې مینه خدائی په تا پیدا کړه — ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړه

اوس دې ستا رضا جفا کړې که وفا کړې — ما د ستا وفا قبوله په وفا کړه

ګل په لعل و په ګوهر که څوک پېري — بې له ما چه تا خندا کړه ما ژړا کړه

بې له ما چه دا ستا غم په هوس پېرم — کوم په ګړے په هوس د غم سودا کړه

دوه یاران به دا رنګ نه وي چه لیسېدلي — چه یوه ورته بخښل بل دعا کړه

ما و درست جهان ته شا و تا ته مخ کړه — تا و درست جهان ته مخ و ما ته شا کړه

وېرهندګي په جهان ګرزي د چا یاد دي — عشق علي پایه دهېرود را بېجا کړه

هم په دا یې ترهه د نام بلند شه — چه قبوله عندلیب د ګل جفا کړه

ناآشنا د بېلتانه له غم خفه زده — خدائے دغه خواري په بخره د آشنا کړه

عاشقان د یار تر سپېرو هم زار بېزي — ګنه ما د رقیبانو څه پروا کړه

زه رحمن چه ستا د حُسن ثناخوان یم

ستا له رویه درست جهان زما ثنا کړه

ولے ولے و عاشق ته نظر نه کړې — دا ګدا په دیدن ولے توانګر نه کړې

ستا د مخ د ډېرے حیا د بېر کورونه وران کړې — چه هیڅ چا و ته کاته برابر نه کړې

ستا په ډېر حُسن یم دا عقیده نه شي — چه دا روغ وګړي واړه ابتر نه کړې

ته پلوله غچه واخله زه ضامن یم — که اورنګ د زماني قلندر نه کړې

زما هر زمان هر دم په تا ګذر دی — ته یو دم زما په لوري ګذر نه کړې

نکه ته چه دلاور زما په مرګ یې — چه دا رنګ چرے رقیب دلاور نه کړې

. د ستا په جفا خوښ یم تل تر تله — که غماز یم له دے رازه خبر نه کړې

ګذشته جفا دې واړه اواره وي — که دا جور و جفا بار دیګر نه کړې

هغه څوک دي چه به ستا له دره دروي — که یې ته له څنګه دره بدر نه کړې

سنګدلي د معشوقو ستا لره ختمه ده　　　چه يې ته په مجلس ورشې اثر نه کړه

رحمن ستا مينې رسوا کړ باري حيف دي
چه ته هيڅ په دا خبره باور نه کړه

ترابده د رنځې پوره به جفا کړه　　　که به مهر وفا هم چرې پيدا کړه

معشوقي که وفا کړه جفا کا　　　ميبايد چه هغه که هغه دا کړه

ما ستا خوي د زهرو چا وته ستا نه يلي　　　چرې نه چه د روغژړنم ترهو چا کړه

چه دې ستا د غم حقيقت د زړه اوښکې　　　دا پټ راز به م په درست جهان رسوا کړه

ستا څه لاس را باندې نه رسي دلبره　　　چه په لاس د رقيبانو م سزا کړه

مرم په دا چه د تقدير په رضا دروم　　　نه په دا چه ته په ځان خپله رضا کړه

په درست عمر به هيڅ ليدلي نه دي　　　هغه چارې چه ته هر ساعت په ما کړه

ما رنځور په کښې کښې پرېږدې چه کړېږم　　　ته لا نور زړه د رقيب سره خندا کړه

لاس تر غاړه د رقيب سره خندا کړه　　　چه ما ووينې له قصده را ته شا کړه

هر بېګاه د واک صبا به خوله درکړم
دا بېګاه به په رحمن که صبا کړه

ستا د خواب الوده سترګو خواب راځنه يوړه　　　شونډو د لذت د مې وذاب راځنه يوړه

نه م وښکلې پېغله شوه نه صبر په صورت کښې　　　د ريعب صبرۍ ږو د يخ آب راځنه يوړه

زړه م نغمو نغمو سوړې کړه مطربانو　　　عقل ساقيانو په شراب راځنه يوړه

يو ساقي بل يار درېم مطرب سره يو ځاى شو　　　زړه ئې له کوکله په شتاب راځنه يوړه

څه شکر کړې يوړه ښا لته دل م تر قربان شه　　　نور چا وړې نه دې خپل احباب راځنه يوړه

هر اسباب چه ما ځنه د زهد د پرهيز وه　　　وا په ستا د حسن په اسباب راځنه يوړه

کړې ما رحمن په زړه کښې نقش د محراب ورو
تا ابرو يو نقش د محراب راځنه يوړه

خراب زړه م د دلبرو هوا يووړه　　　دا هوا لا د ربوچا زده چه چا يووړه

بکوښې کوښې ښالته م زړه د کابزي　　　زه وکوم نه وايم چه تا يووړه

چې زما زړه لړه د تورو زلفو ځائے غوښت
هغه زړه را څخه تورې بلا یوړ

د سیلاب په مخکښ کله د چا خوب شي
شیرین خوب را څخه د بیړنه ژړا یوړ

هغه عقل چه زما د صبر د سکون وه
هیڅ را نه کړه مهوشانو وېړیا یوړ

که یې یوړه بنایسته زړه زما تر قربان شه
ناشناؤ وړے نه دے آشنا یوړ

هیڅ ناحق پرے شوی نه دی که حق وایم
معشوقې د رحمن زړه په رضا یوړ

کهٔ مدام د بل و غیب وته نظر کړ
خدائے له خپل غیب و لے نا خبر کړ

که یوه جردانه غیب وینی په بل کښ
هغه یو جردانه غیب به ئے لوئے غر کړ

که د خپله گناه لویه لکه غر وی
په حیله حیله به غرد پچ وزر کړ

که څوک تله د انصاف درکه په لاس کښ
خپل تهتوا و د بل اس به برابر کړ

تو لعنت دې په داسے مصنفئ شه
چه له حق و باطل وته گذر کړ

خدایئے زما ته ملایکو مقام در کړه
ته دا خپل صورت پخپله گاؤ خر کړ

که دیو وینبته د ځان دپاسه کوڼ شي
ځان هغه ساعت له خدایه مرود کړ

که نبند لي دې په خدائے وي یو کیکوړے
نمایان ئے په جهان کښے لکه نمر کړ

که څوک تر مکے را رشي بیا تر راشي
د دنیا دپاره هسے لوئے سفر کړ

که یوه رتئ دې زړه په لاس کښ کښیوزی
خرس خروار د عبادت په رتئ زر کړ

د ځوانئ عمر دې تیر کړو په غفلت کښے
په پیرئ کښ به څه زیرمه د محشر کړ

په دنیا پسے دې عمري دي زنگ کړے
ځان و خلقو ته درویش و قلندر کړ

نکه وارچه د زړه لولئ ستیر شي
اوس تو بې له ضرورت په سپین سر کړ

په پیرئ کښ د ځوانئ چارے نه شي
ته په ورځ دعاشورے به څه اختر کړ

نکه بیځ د زړه وُلی جبینی وخوری
په دا تیر عمر به څه شاخ د ثمر کړ

د غه باغ به دې خلاص نه شي له خزانه
که چاپیر ورځنی سد د سکندر کړ

د بد خواه وته څوک نیک نصیحت نه کا
رحمن تا په غم شریک دی له بار کړ

وخوبانو ته ولے نظر نه کړ
د حق په کله ولے گذر نه کړ

د بهار چه درست جهان یې معطر کړ    دماغ ولې په دا بوی معطر نه کړ

رضا ولې په قضا سپارلی نه شې!    د غم زهر په ځان ولې شکر نه کړ

جنګ زده چه به ناروه مرګ خبریږې    زان پخوا ترمرګه ولې خبر نه کړ

چه د نورو خلقو په سراچوی خاورې    ته پخپله خاورې ولې په سر نه کړ

پس له مرګه به بیامرې له لوږې تندې    ولې نن ساعت توبه د محشر نه کړ

دا وېیل دې اثر کله کړه په نورو
اې رحمن په ځان ولې اثر نه کړ

کله په غم سوزې کله ریږدې په سارړه    کله مرې له لوږې کله مرې په ډېرخوار

وار په وار په غوغا دې چه ناغلی په دنیا دې    نه یې هغه وږې په قرار دې نه مار

کله لاس په سروبل ته کیږدې ضرا فنع کړې    کله وبل کیږدې لاس په توره ټپ چار

خاورې د آدم چه کړې خمیر فرشتکا نو    درست یې په غمونو په دردونو ولا ر

څه شو که څوک نن ساعت وصل کا یا ترل کا    بېل به په هغه شي چه واصل شي هم تار

بناۍ که څوک پس له مرګه بناۍ په لحد کې    هرچاچه پېدا ژوندون کې خپیر ژار

دینې وار تلونې هیڅوک نه دې پاتې شونې    یو دې په دا لار هم دغان هم د ښار

زلفې دې نداړدې چه هر څوک یې طلبګار دې    لوڅ دې که هلک دې که ځوان دې که وار

نبض د هغه چا دې چه په درکې یې تبدیل شي    آزار له هغه چا یې له دره ګوښا کړ

ما عبدالرحمن غوندې سلام کړه ورته سلو
خدای یې خبر چه کوم یو مخې ترکې د لار ه!

نه یم خوښ د سرو کلونو په سایه زه    خوښ یم ستا د مخ په اور باندې جلیا زه

په اور سوي ښهوران دي څه حکمت دی    سوی ستا د مخ په اور یم بیا زه

حنظلم به دې په هر رنګ چه خپلیږې    که د موم په دروغ که په رښتیا زه

نن راغلی په جهان یې که دید نن کړې    نه به تا په دنیا راشې ته به بیا زه

دا اوږدې وعدې چه ته کوې صنم    کا ښکې بیا مومم فرصت په دا دنیا زه

چه له دوبرې حیا نه کوری و چې ته    غرخ کړم غرخ د ستا ویرې حیا زه

چه له غم له اندوه دې مې نه یم    سنګ آهن یم آدم نه یم ګوییا زه

که جوړه تلې څوک و قبر و ته دریغه — ژاړم داچه یا به ته نه یې او یا زه
همیشه د خپلو و نبود سیلاب — سرګردان یم تر فلک و تر آسیا زه
که څوک تیاس زما د ژړا و بنګو کا — هسې ګرځم لکه خس پاس په دریا زه

زه رحمن دیار ثنا کوم نه شم
کاشکي مه وی په جهان کښ څه ګویا زه

وینته سپین ستر کی تارکي غابن کند اس — نه و کابنې د دنیا له چارو لاس
په هر لوري چه يې مرې پیې دروې — نه په چپ لوري صرفه کړې نه په راس
بې وبنته د عقیدې د په تن نشته — سر تر پایه هسې د رب يې بې وسواس
خدایې رازق ګڼړي او رزق ګټړي له کسب — په اشناس ځان ته واقي حق شناس
هسې رنګ په مذهب صفت موصوف شوې — نه پوهېږم چه ناس يې که خناس
په دوئي کښ به ورنه شي تر توحید د — که پېښوا کړې د بهتر خضر د بهتر الیاس
دا په زهر تانه نغري که پو هېږې — چه ته بې له خدایه نغري هر انفاس
امردا دي چه له نفي زلس کوتاه کړې — او که نه وي خپل سر ولکه نرمه ماس
خیر دي دادي چه له شره وځا روزې — په دا چاره کښ هیڅ نشته کوزو پاس
که زما وئيل دروغ او کوزو پاس وي — ته پخپله پخپل زړه کښ وکړه تیاس
له سړي غرض واړه سړي خوښ دي — نه چه پټ وي د سړو زړو په لباس
څه په دا به عراقي او ترکي نه شي — که په خرد بلند څوک سر ژغي که په اسپ
د تښنه خوله داو بو سره مطلب وي — نه تش اینبي پي او بو د زړو طاس
هر زاهد چه په ریا زهد نه زیږي — د خرینت ګمان يې کیږي په اصاس

اې رحمن که څه ګړدي خود دین رسې
نور کار و نه بیونا دی بې اساس

تیرشه درست عمر زما په دا هوس — که يې و پوښتي چه څوک يې یا څه کس
یو پرسش د هغه یار راګرد بس دې — که څه کس وي خو یو وي در لره بس
هزار حیف دې چه په هر نفس تر تیتم — هغه لورته یې تلی دی څو نفس
چه یې زه په هر نفس له خدایه غوارم — هغه کله کله وینم په دوېره پس

که بوخس وي په محتاجو که غنـي شي
خدای دِ نه کا څوک محتاج د بوخس

هر مرغه چې په جاله کښې همايه دے
که کارغه که مېنګېرک دے که ققنس

که شهباز لره سينه ده د ستنزري
عنکبوت لره سينه ده د مګس

خو چې خاوره له زر شي برابر شي
که چا غونډه ده اغوستې چا اطلس

هم هغه مې خندۀ وي چې ژړوي مې
بل څوک نشته د رحمٰن فرياد رس

که په عقل چېرې لا زه مې پکار نه شي
که له بختندې ياري غوښته يار نه شي

غرونه غرونه خوب په شا شکي او بو دروي
يار په سيند زما د اوښکو بېدار نه شي

معلومېږي چې کم بخت دد رست جهان يم
چې دد رست جهان دلدار مې دلدار نه شي

ما غونډي او رقيب ستاني طالع ګوره
چې سرې ورته دېږي په مقدار نه شي

که سل ځله اقرار راسره وکړه
په دنيا کښې مې بل څوک غم خوار نه شي

بل مې سل نصيحتونه ورته وکړه
هغه خندې بې لاره کړې په لار نه شي

سهل کار دے که رحمٰن په زړه آزار شم
چې خطر د هغې مخ ته آزار نه شي

چې له سترګو مې خوناب د زړه عيان شي
له نظره مې هر څک در و مرجان شي

خراب زړه چې مې ژړل د يار له غمه
بيا په اجر د هغې ژړا خندان شي

کسي نۀ له جمله آفتو خلاص کړم
لکه خاورې د دښمنو په چشمان شي

د غمې زهر ئي شهد شول په صبر
د بلبل په غير آتش په ګلستان شي

عشق بو داد دے په عاشق باندې له خدائ
هسې نه چې د هر چا ورته عيان شي

چې د يار زلف رخسار مې په زړه نقش شو
خيال خلوت مې خراسان و هندوستان شي

د رنځور علاج ترخه ترخه دارو دي
د غه درد دے چې هم درد و هم درمان شي

چې د استاد خولو بوئ ور باندې راغے
د عطار په مخ د اوښکو رود روان شي

علامت د استغنا بمخے خرګند وي
هغه څوک چې تېر تر ځان وتر جهان شي

د ګريوان په چاکولو ئې څه لا زغه وي
چې څيګرې ئې رومبې چاک تر ګريوان شي

نادانان به د دنيا غمونه کاندي
مرد هغه دي چې په زېرمه د خپل ځان شي

نښانه د نادانۍ په نوره څه وي — چه سړے په خپل کودار باندې پښيمان شي

آدميت څه په دولت نه دے رحمانه
بُت که جوړ شي د سرو زرو انسان نه دے

په دنيا کښې له دنيا ګوښه کنار شه — سمندر غوندې په اور کښې ګلعذار شه
پس له مرګه که ژوند غواړې سرګياه کړه — په پريکړي سر بيا نوي مرغزار شه
دا ترخې اوبه په څه کوې د بحر — خود بخپله د ګوهر په څير ابدار شه
بې له خدايه نور د هيچا منت مه کړه — رج په کانړي باندې ونه د کهسار شه
که دوني په څير ګل و ميوه غواړې — ځان په ځمکه کړه سايبان د هر خاکسار شه
دست په دست که د خپل کار په درستول يې — لا بخوا تر ځان وهمي د بل په کار شه
که د ډېره شې له خپلې درماندګۍ — د درماندو دستګيري کړه خبردار شه
که هوا د جنت په خاطر کښې ګرزي — خاک نشين په آستانه د هغه يار شه
که په تور د تيارګۍ کښې رڼا غواړې — تندارچي د يار د زلفو د رخسار شه
که پکار د د سرو شونډو شيريني وي — د خپل ځان په وينو سور لکه انار شه
که راضي يې چه د باغ شې د زړه سبز — په ژړا لکه باران د نوبهار شه

د رحمن په عاشقۍ کښې ستړے و شوے
چه څوک وائي عاشق رونده د غمخوار شه

پاسه يو ځل سيراب د عشق په جام شه — په ساغر د ماه و دهر مې آشام شه
له اول بندګي بيا آزادي ريږي — که مقصود د آزادۍ لرے غلام شه
د صياد له رښتو نو خپل خلاص کړه — لکه مرغ خانګي بخپله رام شه
ژوندے ځان بخپله خښ کړه لکه تخم — که لوئي غواړې د ځاورو په مقام شه
درست جهان د کمينۍ په خوئ وخوړ د — لکه زمکه هسې لاندې تر قدام شه
په نيستۍ کښې د هستۍ مرتبه ګوره — تندارچي په ويرانه د خپل بام شه
د دښمن وته خپل حال بخپله وايه — ځان بخوا تر مرګه و وژنه مدام شه
په مستانو کښې د عقل ښکښني غل دے — که په نورو خلقو خاص يې د لته عام شه
اے رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه — د غه پس په صفت د ګل اندام شه

د دنیا د سود د پاره غمگین مه شه　　غم د دین وه د ایمان خوره بې دین مه شه

هر گره گره گشایه لري کهٔ بخت ته　　ناامید له خدایه غوټه په جبین مه شه

د بې رخنت دي دا رنده چه دانا چین شي　　ځرداب و داندښته دانه چین مه شه

هر مرغه چه د بل غوښې خوري مردار وي　　ځان حلال کړه لکه زاڼه شاهین مه شه

د درزي په څېر انتاب په طلب کړه　　لکه ټیږه هسې پروت په زمین مه شه

کار په تش لستوڼي نه کیږي بې لاسه　　لاس په زیره کړه بې لاس آستین مه شه

عاشقي او خود بیني دي سره لرې　　که مطلب دې عاشقي وي خود بین مه شه

په خپل گور کښې د سفر دې که پوهېږې　　مسافر د هندوستان و د چین مه شه

خپل تابوت در ته ولاړ زین کړې اس دي　　ته په زیر مه د بل اس و د زین مه شه

چه تقوی دیانت نه لري رحمانه
ورسره هسې همنشین مه شه

په اُمید د آینده وو زړه سوړ مه شه　　نیسه نقد خپله بیل کړه او تر مه شه

په امید امید دې خلق ناامید کړه　　د فلکه له رهزنۍ بې خبر مه شه

د دنیا بادشاهان خواست کړي له فقیره　　ته بادشاه هسې ملک شه خواستگر مه شه

د هاڼي په څېر طمع کړه د اوچ صابونکي　　لکه مچ طالب د شهد و شکر مه شه

ځان صدف غونډې و خاوره ته کړه ځاره　　لکه خک هسې د خاور په سر مه شه

وېر غرېږدي سره د لان د سنګدلانو　　ته يو ښانخکي شه د اوبګړو هر مه شه

حیوانان هم په تسبیح د رب مشغول دي　　ته انسان يې له حیوانه بتر مه شه

نفس شیطان سره د کفر وته باسي　　رحم نه هم پخپل ځان وکړه کافر مه شه

پټ راغلي دي عاشقان دیار له غیبه　　ته پټ روند د هغه یار په هنر مه شه

د غه ځای د بېد لا نو دې رحمانه
د دلبر په کوڅه د لاور مه شه

هسې بې له یاره زه یم په جهان کښې　　چه زه نشي ځای په زمکه په آسمان کښې

سره گلونه د چمن راته سور اور شي　　چه قدم بې یاره کېږدم په بوستان کښې

چیغې مرنه یم نه پېرې بې نیازي　　حیرانیږم د ناتوان صورت په توانګښ

که هر څو فکر له ځانه سره وکړم — هیڅ د صبر طاقت نه وینم په ځان کښ
هیڅ ساتنه د سر کښ خاطر را نه شي — څوک ساتلی شي بڅري په ګریبان کښ
ترهغه به بل نادان په جهان نه وي — چه څوک مهر و وفا غواړي په نادان کښ
که مې سل ځله په زار و قربان بولې — غوږ را نه باسي په زار و قربان کښ
هسې رنګ زما په ویرنه ژړا خاندي — لکه ګل د سپرلي خاندي په باران کښ
جوهري شي در و لعل که ئې برخېره — چه یې کښیني د دوه سترګو په دکان کښ
چه یې هیڅ رنګه په خوا په خاطر نه وړو — زمانې را ته څرګنده کړه په زمان کښ

چه په وصال یې اوښکې نه وچیږي
ترو به حال د رحمن څه وي په هجران کښ

زړه مې یا ښیلو ستا په مینه محبت کښ — عاشقي د زهر را کړه په شربت کښ
لا زما و یار ته مه ته ره ناصحه — ما موندلې د هغه دیدار په ډیر محنت کښ
که صورت د هغه مستي را څرګنده شي — عقل هوش به دې هیڅ نه وي په صورت کښ
که د عشق تر ګمر پر یوزي سر به بایللي — ته چه ما ته غابښ چیچي په نصیحت کښ
زه تر سه په هغه تیر عمر وکړم — چه صرف شوي دي بې یاره په غفلت کښ
د اشنا د مخه پټ به مې مات نه شي — که مې سر له تنه درومي په دا پټ کښ
له ادب یې ورغ تر کښي نه شم — خدایه رابښه جدائي کړه په وصلت کښ
په قیامت که څوک له نیت پوښتیده شي — زه د یار د کوڅې خاوره یم په نیت کښ
د درګاه د په خاک نشینو سختي نه وي — د غمونو د خلق نشته په جنت کښ
لکه زه چه ستا د دره خاوره خوښ یم — خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت کښ

د دنیا له دولتونو بې پرواد یم
زه رحمن د عاشقۍ په دولت کښ

مدام ناست یم وچ کوګل سترګې په نم کښ — عشق را ځنود بحر و بر په خپل حرم کښ
ما چه زخم ستا د تورې بخوله کښل کړه — نو زه د الذت به نه مینم په مرهم کښ
خود مجنون په سر په پښو و لیلي کښینود — سرو زر شه په عجب [illegible] عجمه کښ
زور اور مدام غالب وي په کمزوري — [illegible]

که زه په مستغرق یم ستا په غم کښ    بل به نه وي په جمله بني آدم کښ
که مرې د ژوندو ترمیانه پروت وي    هسې بیل یم له عالمه په عالم کښ
هیڅ صحبت م د دم کړو په دم نه شي    هم په دا چه زما دم دی ستا په دم کښ
نه م بې تا تنګ د پوند جست وجو شته    سر اوږم تریږ په هر دم په هر قدم کښ
که نصیب م شي کوڅه ستا د سپیو    و به نه کړم نو نظر په جام د جم کښ
زړه م هسې ستا په زلفو پسې ورک شه    لکه غوټه د چا پریوځي په تورتم کښ
سره په وینو د سرو ګلو په څېر زانګي    هزار زړونه ... د زلفو په هر خم کښ

زه رحمٰن کناره خوښ یم له عالمه
باري ستا سترګو رسوا کړم په عالم کښ

مغرور مه اوسه د عشق په کاروبار کښ    هر خس په تیره تیغ د مې په دا لار کښ
داسو ګل به وډه ستا په وینو سور کړم    چه دا یې زمانې دي په دستار کښ
مخ د ترکو چه تراب حیات صاف دي    زړه مې آب حیات شوید په ... ر کښ
چه دا وسپینو دانه پرې اوبه کیږي    تروږ زما د هغې څه دي په دیار کښ
چه په هر واري زه سترګو ته نظر کړم    لاس م ولې دي له ګڼه په هر وار کښ
یاره ته چه له ما صبر و قرار غواړې    عاشق کله وي په صبر و په قرار کښ
که م سر و مال دا ستا په صینه دروي    زه ترسره مال تیریږم په دا کار کښ
ستا له درده دیاره به وژاړه وړم    څو ژوندي م ستا په دا او په دیار کښ
که بهتان دیار په وصل کښ مجبور دي    دوچ وکي بهره نه دي په بهار کښ
صفا نولوره عین کوهسان دي    که همه عمر بي کوز وي په بازار کښ
وغیب جوي ته واره غیب ښکاره ښکاریږي    بنائسته ده ځان یوسف که په سنګار کښ
چه هنر د عاشقۍ بې حده نصیب کړه    بې هنره نور څه نه وینې په یار کښ

دا د اخوند د څنپل زړه ور لسو بس دي
څه حاجت دي د رحمٰن په لاله زار کښ

هسې خوښ ستا د ریدو خنک ادي کښ    لکه خوښ یم سرداران په سرداري کښ
عاشقي که نور و خلقو ته خواري ده    ما موندلې دا دولت دي په خواري کښ

د بیمار ته که ناخوښ رایی و ځکړی    خوښ یم زه دا ستا د عشق په بیماری کښ
د ښکلو بام و دروازه وته نظر کړه    هسې سترګې د زما په بیداری کښ
یار دیار له سترګو اوښکې پاکیزه کړه    تا جاری کړې زما اوښکې دریائی کښ
ماله و ویره ناچاری دیار ته ښکاره کړه    سره عذر دی په ویره ناچاری کښ
غم به هیڅ بیود هوښیار خوښ کړې نه وه    ما خوښ کړی دی ستا غم په هوښیاری کښ

د رحمٰن اوښکې به څرنګ په قرار وی
چا لیدلے دے دریاب په قراری کښ

زړه یم ډوب دی ډوب کیږی ستا د غم په غلبو کښ    هسې لکه څوک چه مستغرق شی په اوبو کښ
ستا د عشق له موج په هیڅ لوری وتی نه شم    دواړه لاس یم پریواته د عشق په لامبو کښ
سل توبې یم ماتې کړې راوتیم له عشقه    سادیساه یم نوره پاتې نه شوه په توبو کښ
نه چه له ما ورمی دادا او ښکو باران ګوره    روح د سفر هیڅ نه دی په دا کنړ وشیبو کښ
نه بوه سپوږمۍ نه په اسمان کښ هزار ستوری    بې تا به څوک څه کاندي د خلقو په جنبو کښ
عشق و عقل دواړه سره ضد دی که پرهیزې    کله کړی آرام دا اور ځړی په پنبو کښ

هر څوک چه د عشق په آتش ځان سیزی رحمانه
خدائے دی ابراهیم غوندې څوک نه کا په لنبو کښ

د بلبل له حال زده کړه په خزان کښ    بیا د ګلو تماشا کړه په بوستان کښ
خوږ دې ستره تلخانی ترستونی نه شی    شیرینی به خوند ورنه کا په دهان کښ
ما په هجر کښ لذت د وصال بیا موند    له یوسف ملاقی شوم په زندان کښ
که متن له معنی معنی له متن    یار هم هسې مه زما په دل و جان کښ
عاشقی آسانه مه ګڼړه خبر شه    سربازی ده نقش په دا میدان کښ
ناتوان له ناتوانی و ویریږه    هر چه بل آزار ورکړی په دا جهان کښ

په رحمان باندې یار د هسې حال دے
لکه حال د زندانیانو په زندان کښ

تا د مینې ګوهر نشته په هر آب کښ    مګر بیا موند شی دا وښکو په دریاب کښ
ته وینې زما چه ښنیے دلبره    رنګ د لبو دې ګواهي لی په احیم ب کښ

په هر ځای چې ستا د لبو نام آغاز شي
د لالو یاران وړي په احباب ګڼه

د خسته زړه نو به څه دلستاني کا
د خراج ګنجائش نشته په خراب ګڼه

زه حیران د استاد ورځو په تور خال یم
که فرشته کل سجده کا په محراب ګڼه

ګل له د ویښه بارکې په شبنم خوړ شي
نازکان زړه بار وي په صاف خواب ګڼه

د بهار په ګلو ووړي مبارا نو نه
د غنچو یکي طاقت نشته په حباب ګڼه

درحمن غلطي و بخښي اے خدايه
دا د ترو چارے نه وي په حساب ګڼه

ښایست مخ دی تور کو دے شي به پیرۍ ګڼه
هم قامت دې که بلرګی شي په پیرۍ ګڼه

که شمع د شمس آفتاب د ژمی
هم بې تاب او هم زېرې شي په پیرۍ ګڼه

په طرفه به سر سبز دی بل خوا د ژمی
خپل صورت تمام پردے شي به پیرۍ ګڼه

د مرده و به حساب وي غـزا و غـوره
که څوک ګند لیده ژوندے شي په پیرۍ ګڼه

مړ لا نه وي بس نه مرګ بیا ژوندے شي
نشته دا چه خوک زلمي شي په پیرۍ ګڼه

که څه و خوري نه زهر نه هضمیږي
نه غه ډنبي نه خوړے شي په پیرۍ ګڼه

دا څولي دو چه څه اوري یا څه وینی
نه لیده نه اوریدے شي په پیرۍ ګڼه

اے رحمانه پیري ډیرے عاجزي ده
که رستم وي زړه پرے شي په پیرۍ ګڼه

هر ساعت چه څه ګذران دے بے مخلص
هزار بار دا ارمان ارمان دے بے مخلص

که خوک وائي چه له ځان شیرین څه نشته
وے ما ته ځان تاوان دے بے مخلص

په بلبل که بهار که خزان وي
په ما ګواره خزان دے بے مخلص

که شبنم همیش د نور رابندې وي
په ما کا نړے د آسمان دے بے مخلصه

د مرغونه د هجران رابندي تیر دي
اوس یو دم رابندي ګران دے بے مخلصه

دا ښنادمینه او دو مه ګل دے
ګل دا اور په دود سوزان دے بے مخلصه

په وصال کښې مې نه مرګ لبدد نه ښبد
اوس مې مرګ په هر زمان دے بے مخلصه

زه حیران د هغو د دوی په روز کا ریم
چه ژوندون وته آسان دي بے مخلصه

د رحمان [illegible] نه شي
مسافر غونډې حیران دے بے مخلصه

په امید په عمارت د دې جهان ګې — لکه کر بنه په اوبو هسې نشان ګې
د اوبو په مخ د کرنې بقا نشته — په نابود بانید ناحق د بو د ګمان ګې
نادانانو هسې دین په دنیا بائیلود — لکه وړوکي د ربدل په پاره نان ګې
د دنیا و دین نسبت و بله نه شي — اور او به سره استوګنه په څه شان ګې
عشق د نفس له خاصیت منزه دي — کار د ستر ګې به څوک ښکه په دهان ګې
لکه کار د ګوش و چشم سره بیل دي — هسې دین و دنیا حکم په ځان ځان ګې
به پیرۍ کې د ځوانۍ خیال دې هسې — لکه څوک چه د باغ سیر په خزان نه ګې

بې درګاه دې یې بل ځای د رحمن نشته
په سفر استوګنه څو مسافران ګې

چه امید په عمارت د دې دنیا ګې — د کاغذ په کشتۍ سیر د دریا ګې
د آسمان توسن هیڅا نه دی تیز لې — څوک به څرنګ سورلي د باد پښان ګې
نه لیوه په آدمیت آموخته کیږي — نه امید د مروت شي له افلاک ګې
له ننګ د وفا امید باطل دي — کله دیو له آدم زاد سره وز ګې
زمانه په اسلام کفر سمه ګرزي — فرق د تور و د سپین همه بنیا ګې
ماند هر علامت په ستر ګو ولید — په هر دم هزار پیدا هزار فنا ګې
هیڅ امید مې د ایام په ګردش نه شي — چه فرصت به په خپل دور ما را ګې
په خپل غم به هیڅ الید لي نه وي — هغه چارې چه د هر ساعت په ما ګې
که د ګل غنچه کیږدم په دستار کې — شوم طالع مې هغه خار ځنې پیدا ګې
که د زر و ته غلام کړم خاورې کیږي — که د خاورو په آرزو شم استغنا ګې
جدا یې د خدای بلا شوه نه توانیږم — خوشې زړه مې په دیدن پسې ژړا ګې
همره صبر دی عاشق څخه له کوم — چه د ژن وعده موقوفه په فردا ګې
که دا ورجامه را وا غوندی دلبره — په نظر زما جلوه لکه دیبا ګې
په خپل عشق کې که څوک بد را باندې وائي — زه ګمان کړم چه همه زما ثنا ګې
ملامت په عاشق بناق د دستور دی — چه رونغ خلق په زنځر پورې خندا ګې
عاشقي ننګ و ناموس دي و بله لرې — پیر دو بنانه وړځ به څوک څرنګه غلا ګې

که زه طمع کړم د ګلو له طالع نه — ما عاجز لره د ګل پځای خار راکه
که زه ځان ژغورم په عشق کښې له عالم — زمانه مې په جهان باندې رسوا که
همیشه به په عالم کښې وي سرخ رویې — چه ښا لکه بلبل د خپل آشنا که

دا خواب رحمٰن هغه کا چه دولت وي
که دلبر د دیدن مې پیاپې راکه

اورنګ زیب چه آرائش د تخت و تاراج که — تخت و تاج به یې مرګې تاخت و تاراج که
په جهان کښې به یې باقي بد نوم شي — که دي چارې د ګرزي او د حجاج که
او به ستړګې ئې لاړې او د زړه شې — څوک به څښکله ژوندون په دا مزاج که
ځکه یې زما په زړه کا هسې چارې — لکه بانچه په تار و او په دراج که
زما ونځې چه پیدا د زړه په زیم شوي — لکه اور چه له کباب نم اخراج که
زه غمجن د عید په جشن خبر نه شوم — که نور خلق هاي وهوي ته احتیاج که

هر ناوک چه د قضا له شست خیزي
زمانه د رحمٰن زړه ورته آماج که

ما توې مې خولد په شوک — خراشي مې زړه په نوک
که ناري وهم که ژاړم — پروا نه لري یو څوک
راشئ ګوری منصفانو — د دلبرو دا سلوک
لکه ګل په لاس د ظنبر — زما زړه که شوک په شوک
د چشمانو په غمزه یې — ژوبل ژوبل یم توک توک
د فلک په توسن سور شي — دستار کېږدي په سرهوک
هیڅ اثر ورباندې نه کا — د دردمند و درد دواک

ای رحمٰن چه عاشق شې
ځان دې ناري کوک په کوک

عاشقان د ناصحانو وینا نه کا — مست هاني د ماوتانو پروانه کا
واره جور د دي د هر مې قبول دي — که خدای ما له خپل یار جدا نه کا
چه د ګلو پریشاني شوه ور څرګنده — غنچې سر په زانو کښېنو خندانه کا

وسیلاب ته د ډنډ وکي څه حاجت دی — زړه چه ژاړي سترګي څرنګ ژړا نه کړ
دنیا کل په احمقانو ده ورډانه — دانا ځکه وابښکي د دنیا نه کړ
چه مې زړه وي په هوا پورې تړلې — د حباب عمارت ځکه بقا نه کړ
بې هنر دي چه څوک دین په دنیا پلوري — هنرمند سړې دا هسې سودا نه کړ
که څوک وائي هوښیار کم رایه دا دی — چه بې خدایه نوره مینه په چا نه کړ
ګدائي که ورپېښېږي ځائې بې دا دی — هر بادشاه چه دلجوی د ګدا نه کړ
چه بیدل یې په یوه نګاه د رغیږي — خدا انصاف دې چه دلبر یې دوا نه کړ
هر چه زړه یې وي په یار باندې بائیلودی — نوره مینه په چا بل له آشنا نه کړ
چه ترغوږ وي د دنیا د آشنا شوې — هغه غوږ هر ګزېږه نور د وینا نه کړ
وبه نه رسي دیار ترسربلند بام — چه د زړه غوږ روښن په ژړا نه کړ

زه رحمان د هغه یار په ژړا خوښ یم
که اغیار یم خدائې له میانه پیدا نه کړ

هر چه ستا کوڅه ماواک — ځئې برشي ترافلاک
ځان هاله ورته بادشاه ښي — چه یې ستا د در ګداک
چه دې ستا د در ګدا ښي — بادشاهي ورته نورشاک
نظر بې دا ستاله رویې — نه په ارض نه په سماک
مینه بې دا ستاله مخه — نه په دین نه په دنیاک
ستا په مهر و محبت کښ — ځان جیان وار ه تناک
د دنیا کور و ټکړی — ستا په مینه کښ تالاک
رضا ستا په رضا کېږي — ترکه خپله مدعاک
وهر خوا ته چه ستا مخ ښي — دی هم مخ په هغه خواک
چه له چا سره جفا کړي — له هغه سره جفاک
که له چا سره وفا کړي — له هغه سره وفاک
که په عمر چرې خاند ې — خوله تا سره خنداک
که په عمر چرې ژاړې — خوږه تا په ژړاک

که مطلب یې د دیدار وی    ستا په ذکر مشغولاک

درښتینو مقام دا دے    که څوک مینه په رښتیاک

عاشقان په عاشقئ کښے

چه رحمٰن وائي هم داک

کیږه د تره په پړی سره کلکک    د روټئ طمع د مه کړه له فلکک

هر سائل چه سوال د نان کړي له فلکک    ګویا غواړي په کچکول کښے اوبۀ مک

له آسمانه چه څوک طمع د وفا کا    دغه طمع یې طاعون ګڼړه بیشکک

له بارانه سره هسے ګلۍ وری    چه هر زخم ئې بد تر دی تر توپک

که په چاۍ شفقت و مرحمت وی    ظلم جور به ئې تیره وی تر ازبک

مور به نه شي هیڅ سرے بے قناعت    که ئې خونه وی په سیم و په زر ډک

بیا به نه موی کمال بے کمینۍ    که خیمه ئې وی د عرش د پاسه لک

که جهان په نور عالم باندې فراخ دے    په تنګ چشم باندې تنګ شي له چښمک

د دے دهر په یابانو کښ آب نشته    که ئې غواړې تر سمه د تر سمک

تر غرار بکے د عاشق آب و نمک دی    خدائے دې نه کا څوک بې آب و بې نمک

دا د دارے اندیښنے مه کړه رحمانه

د دنیا چارے په تله دی تره مک

چه په زړۀ مې تور لحد شي د خپل خاک    بے مزه مې شي هم خوب هم مې خوراک

چه د خوب او د خوراک مزه شي ورکه    نو له مرګه برابر شي هغه ژواک

غلط وائي چه څوک عمر ورته وائي    هغه عمر چه تیریږي په پنځاک

نن سپیره پخار رد ډکه خوله بهتر یم    چه آخر مې د اخوراک دی دا پوشاک

ځائے لری که ځان ژړندے په مرګ بنج کړم    چه مې پس له مرګه ځائے دے یو مغاک

ګویا شوی دی هغه چه شدنی دی    زړۀ پخرا تر هلاکت یم هلاک

زړۀ چه روغ وی ګریوان کله خیرا د شي    له ګریوان معلومیږي د زړۀ چاک

نن و ځانله و جامه هسه پاک پکار دی    چه پرمنځ شي چا زړۀ له غیره پاک

سرے بویه چه درون بیرون ئې یو وی    نه هغه چه بیرون زر دی درون لاک

له سړي غرض واړه سړي خوب دي          نه چې سر کښې ئې طره دي يا مسواک
د دنيا چارې همه واړه فاني دي          څوک به يو ده ورځې خوشحال دي څوک غمناک
په ساعت کښې څوک خوشحال کا څوک غمناک کا          دا خو يو نه هميشه دي د افلاک

چې څه کاندي واړه خدائ دي نور څه نشته
رحمن څه دي څه ئې واک څه ئې ادراک

زړه مې بې خپل نګاره آرام نه کړ          کامراني را څخه غواړي ناکام نه کړ
بې ناکامه زيست محال دې په دنيا کښې          د کوم اس په خوله کښې دخل لګام نه کړ
د آسمان مانړئ به هم په قرار نه وي          سالک څکه قصد د قصر د بام نه کړ
کاه يې کښينوي په تخت کله په خاورو          زمانه د رضا د هيچا مدام نه کړ
بې له سره چې ازاده خدائ پيدا کړه          ترکي څکه د هيچا ته سلام نه کړ
کوه و دشت هم د خزان له غمه ريږدي          څکه زړګه د چمن ته خرام نه کړ
چاچه سر دي په سجده د يار ته ايښی          دوباره له دې سجوده قيام نه کړ
چه ئې کړه ده ديار په لوري لونښتي          لکه بحر هسې د روي مقام نه کړ
نښتي د عاشق نښتي لکه شمع          څو صورت د عشق په اور کښې تمام نه کړ
چې محفوظ دي په تش بوي د مهرويانو          هغه فکر د بوسې د پيغام نه کړ
چې لذت ئې د سرو شونډو دي موندلی          نوره مينه د شرابو په جام نه کړ
په هغو د لعلو لبو مينه حرام دي          څو دا نور لذت په خپل حرام نه کړ

رحمن هسې د خپل يار ته بې محبت دي
لکه څوک چې صاحب ته غلام نه کړ

زما د ښکې په دا هسې شست و شوکت          دا محنت واړه زما د مخ آبرو وکړ
د عاشق د سينې چاک به ورته ګند شي          که څوک سر و خپل ګريوان ونه فرو کړ
تل مخ دي تر خوبانو پورې ولي          عاشق په د چا و ښکې په شيبو کړ
د عشق اور چې شمع خود په سر قبول کړه          پروانه به څه محبت د ځان په سو کړ
ګل څه نه وائي چې غرق په وينو ناست دي          بلبل څنګه لړه بيځايه ګفتګو کړ
زه که مرګ غواړم بې ياره خو ګرم نه يم          جدائي سرې په ځان پورې په کو کړ

معشوقي په محنت نه دي چا موندلي
مګر خدايي په رحمن باندې پېرزو کړ

چه خېمه يې د سيلاب په مخ شوه لګ
د حباب تماشه ګوره ستر د مکړ

هېڅ پکار نه ده ويناد پانړ په سوري
لا ترلاندې دي د خولې کو کوډ نګ

داد لاندې به همه واره چيت پيت شي
مګر سر دي چا وګښلی تر فلک

چه په اصل خدای نسکور دې پيدا کړې
څوک به څه خوري دده دهر له خانک

چه دښمن يې وي له دوست اړ ووړې
دهغه احتياط بوبېه له کومک

راشه واچوه د نفس وخوله ته خاورې
څوک دې نه ده خوله دګور په خاورو ډک

هرچه ډک يې دګور په خاورو خوله شي
په هغه به دي حرامه نوره څڅک

که نور څوک تبارکي کا څښله نوره
ورحمن وته خپل يار دی تبارک

څو يې خُلک يې تاراج په جفا نه کړ
يار له ياره سره مهروفا نه کړ

که مې سر په بوسه ورکړم زه پوهېږم
چه قبول به دغه عجز زما نه کړ

چه په خپله رضا تللي مادرزاد وي
هغه چېرې د نورو رضا نه ک

څوک خپله مدعا حاصله نه وي
مهرويان په خوله د خضر سودا نه ک

که مې سل خله دعا کوم په عمر
ګوټې وهرش دد عاکو په دعا نه ک

که آهونه آتشين پېي د ګازم
يکه سرو د خزانه پرواد نه ک

که رحمن په عاشقۍ کښې آرام غواړي
دا خو دا په ناروا کا روا نه کړ

که په هجر کښې څوک ما پوښتي له حاله
حال خو دا دی چه ناتوان يم بې مجاله

زه ديار په ديدن څکه شتابي کړم
چه د عمر بقا نه وينم ستر کال

چه تر حسن تر جمال بې زار نه شم
شرمنده يم دخوبانو تر جمال

ته وما ته نصيحت مه کړه ناصحه
عشق بې نياز دی له ثواب له وباله

بې د خپل آشنا د حسن له تعريف
هېڅ مې مه پوښته له نوره تيل وقال

دنيا په آخرت يم دې خدائي نه کا
بې نصيب د مهرويانو له وصاله

که یار سر په ویدن غواړي مه جار ووزه
دغه حکم رحمٰن کړیدے د لا لَ

ما چه سترګے و مخ ته داړولې
په هغو سترګو مې وینې وژړلې

د عمل جزا م بیا مرنده سر حقه
دا دستور دی چه کړی هغه اخلې

تو خم زړي یو په سل زره قاتل دی
تل چرے توره په کانړی تیره دل

خود کرده به څه تاوان له چا نه غواړي
چه نے غوټ په خپل تیغ کړو بینے خپل

ما لا مرګ د اشا په مینه کښ حاله کید
چه ګدا د بادشاهي لاف وهلې

له خوبانو نه به خوک څه وفا غواړي
سرو کله د کشمش میوه نیولې

په دربار سنا اسي شه ورته کښینه
تا دیه تا ددَ سروینته ایرے مښلې

که دفتر د خپل قسمت د چا په لاس دی
بدے بخرے به چا کله قبلولې

چه نیکي ورکوله و نیکانو
دے بدانو څه بدی نه وه غوښتلې

خوک له خاورو ایرو پاڅوي تخت ورکړي
خوک له تخت د ایرو په ویران ولې

ستا چه نیت د آشنایئ نه وه صنمَ
د رحمان سترګے دِ ولے نه ګنډلې

دا زل په ورځ دَ بخرو جاري وه
اے رحمانه چا بائیلودی چا ګټل

بیلتانه دِ هسے خوار کړو زما دل
چه له ځانه ئې ویزار کړو زما دل

عاشقئ همره داغونه دی مرا بنې
چه تمام یې لاله زار کړو زما دل

چه د زلفو په کمند سره دِ راکېښ
په بلا دِ ګرفتار کړو زما دل

راس و پښه د خلقو نیبی دعا غواړي
میڼه هسے منت بار کړو زما دل

بے سبب چا آزارمند لے نه دے
تا په څه سبب آزار کړو زما دل

زه رحمٰن خو منت بار دَ عاشقئ یم
چه مین یې په دلدار کړو زما دل

چه له نازه پوشیده لري چشمان خپل
څه به وینې مقتولان د مظلومان خپل

چه بنګنګل راته په قهر قهر کاندي
دالا و ګنړي په ځان باندې احسان خپل

ګفتګو په اشارت کاندي له نازه
کله اسم د چا اخلي به زبان خپل

پہ گریوان باندې چہ تک وهي غو تہ ئ ! — عاشق کیباسی لا سونہ پہ گریوان خپل

خریدار ئے لہ حیرت بی شعور شي — چہ دحسن رخت ښکارکند کا پہ دکان خپل

چہ خپل مخ پہ آئینہ کښ ورښکارکند شي — خود بخپلہ سرفرود کاندې پہ ځان خپل

چہ هرڅوک يې عاشقئ وتہ هوس کا — گویا لوبي کا پہ دین او پہ ایمان خپل

هیڅ صرفہ دچا پہ سر و پہ مال نہ کا — مالید لی دی بخپلہ مطلوبان خپل

مجنون ملک دعاشقئ هالہ خپل کړ — چہ پہ او رباندې يې وسوه ځان ومان خپل

هیڅ دستر گو غر دلو خوند يې نہ وی
چہ رحمٰن پہ ستر گو نہ وینی جانان خپل

څو تر مینځ ورانہ نہ کړې دتن پول — و پہ نہ رسی تر خدا ئے و تر رسولؐ

خدا ئے وتا تہ دین دنیا پہ غوره کیښود — تا دنیا کړه پہ دا دوارد کښ قبول

تر حرص پہ هورتہ بلہ بلا نشتہ — دا بلا دِ ستا پہ خونہ شوه نزول

یو ساعت د خدا ئے پہ ذکر مشغول نہ شوې — تمام عمر د خپل ځان پہ غم مشغول

چہ باقي زندگاني پہ فنا سپوری — ځان بہ کوم دانش دانا بولی مجهول

لہ خالق روگردان شوې و مخلوق تہ — بیا وځان تہ عاقل وائې نامعقول

نصیحت لکہ ملک درباندې ترنج دی — د دنیا پہ شیرینئ پسے ملول

چہ رحمٰن غوندې خورسند نہ شي پہ نول کښ
خلاص بہ نہ شې پہ هیڅ رنګ دزره لہ نول

چہ دیار پہ درود غم کښ شادمان یم — لکہ گل د پریشانئ پہ وخت خندان یم

تہ زماو بې کسئ تہ نظر مہ کړه — خدا ئے ساتلی لکہ گنج پہ بیابان یم

لکہ ونہ د ځنگل پہ میوه سپر ده — څو کیدا د پہ هر نفس دخپل کار روان یم

یو وینتہ یم د صورت بي عشقہ نہ ری — لکہ لعل و در پہ غاړه د خوبان یم

د وصال مرغہ دا و بنگو دا نوار کړه — پہ ویرانہ ویرانئ کښ اباد ان یم

د کاملي عقیدې لہ بر کتہ — دہ ونهي پغاړه ناست شاجهان یم

روښنائي یم پہ طلب کښ سخره حاصلہ — شپہ او ورځ لکہ آفتاب پہ لار روان یم

چہ صفت د تورو زلفو د آشنا کړم — بلې سر پہ لو یہ لار د هندوستان یم

بې مینې مې هیڅ حال د صورت نشته     لکه بې مال د متاع تش دکان یم
د هوس بلبل د بیا را باندې نه کا     دا نلاس په کبل دکې د خزان یم
دلبرانو وته خاک تر تلي لاندې     د دې نور جهان په سر لکه آسمان یم
چې د یار په دیدن سرو مال نبندم     خلقو دا ورځ زه هغه عبد الرحمن یم

په هر دم کښې نوې نوې تماشا کړم
زه رحمن د خدائ د کړو وته حیران یم

په بنه خوئ له بد خواهانو بې پروا یم     په نرمۍ لکه اوبه د اور سزا یم
د هر چا ته په خپل شکل څرګند سیږم     آئینه غوندې بې رویه بې ریا یم
قناعت مې تر خرقې لاندې اطلس دی     پټ د درست جهان باد شاه ظاهر ګدا یم
د غنچې په څیر په سل ژبو خاموش یم     لکه بوئ هسې په پټه خوله ګویا یم
په ژړا مې د خپل یار دیدن حاصل کړو     د شبنم په څیر له ګل سره یکتا یم
هم په دا سپینو جامو به معلومیږم     لکه ابر هم ګوهر هم دریا یم
د دراز عمر مې حاصل شه له راستې     لکه سرو مدام سبز و تازه پا یم

که چا لار د عاشقۍ ده ورکه کړې
زه رحمن د ګمراهانو رهنما یم

که هزار ځله نرمې د زړه په یاد یم     زه چې یار په سترګو نه وینم ناښاد یم
که یار سل ځله وعدې د وصال وکه     زه له ویرې تلوسې بې اعتقاد یم
په جفا د په وفائې لا رغه نه شي     پر حذر د نازپرور په ګړي دا د یم
د بې نیازو په نیاز غم امید د کړو دي     زه پرون سلطان خسرو یم نن فرهاد یم
که د یار د لاسه اور را باندې سېل وی     لکه شمع مستقیم په خپل استاد یم
بې مینې قرارې را باندې زوک دي     ټینګ او ږغ په حرکت کښې لکه باد یم
که همه عمر مې یار په غیږ کښې ناست وی     زه له غمه به د هجر په فریاد یم
یو زمان مې زړه مراد موندلې نه دې     پیدا کړې خدائ په اصل کښې نامراد یم
د وصال په یو د کال مګر برپائې شم     د هغې په هجر هسې بې بنیاد یم
چې دې نوره نتیجه نشته بې غمه     حق حیران د عاشقۍ په داد یم

په وصال کښې مې د هجر طمع نه ده — اوس حیران متحیر په دا ښاد یم
بې له عشقه چه مې بېړۍ شي د پوزې — کنه نور د جنګلي تیده آزاد یم

که مې پېره که مې پلوره چاره نشته
زه رحمن د بنایته زخانه زاد یم

زه د یار په درد و غم کښې غرقاب خوښ یم — په دا اودر کښې بې طاقت و بې تاب خوښ یم
که د ویښم په اوبو کښې په اور سوزم — د سروشوني و په آتش و په آب خوښ یم
چه دیار د خط و خال ننې پکښې وي — زو رپند سر په مطالعه د کتاب خوښ یم
ترد اپوچه گفتگو چه زه ئې اورم — په نغمه په ترانه د رباب خوښ یم
د ریا تر نا قبول عبادت زه — د ساقي په میو مست و خراب خوښ یم
چه نه علم نه تسبیح نه تلاوت وي — له دې هسې بیدارۍ په خواب خوښ یم
د طوبۍ د ولې سوري مې خوښ نه دي — تا د مخ په لمبو سوي کباب خوښ یم
خاموشي که هر څو لویه مرتبه ده — زه له یار سره په سوال و جواب خوښ یم

دیار دې پره غم خوارۍ یم عاجز کړې
رحمن څکه په خوړدن د شراب خوښ یم

صبح و شام مې لاس نیولي دي دعا کړم — خواست له خدایه ستا د مهر د وفا کړم
هیڅ د دروغ رښتیا مې نه زده که باور کړې — ستا د پاره هم دروغ و هم رښتیا کړم
وار په تا ئې که خندول که ژړول کړې — زه په څپله نه خندا نه ژړا کړم
که ته نه یې یارې وایه را ته څوک دي — زه دا هسې لیونی د مجنون چیا کړم
خوب خندا د بېلتانه په زمکه نشته — څه آرام به په دا دشت کربلا کړم
هره ورځ چه مې تېرېږي ستا په غم کښې — زه په هره ورځ پوهېږم چه غزا کړم
بوویښته مې د صورت کوږ شوي نه دي — هسې رنګ د پټ پنهم په زړه ادا کړم
زړه که یو ورې ما خو تا لره درکړي — بل که نور د لره نور زړونه پیدا کړم

چه په واغوست سر و پائې د عاشقۍ
زه رحمن دې سر و پای سر و پا کړم

دا ستا درد به په هزار درمان نه کړم — دا نسته به د غم سود په زیان ورنه کړم

که څوک را کاندې دُنیا و عقبیٰ دواړه — عاشقي به دې په این و آن ورنه کړم
که مې چېرې لاس د استا په بوسه برشي — د انعمت به د جنت په خوان ورنه کړم
څو مې تیغ په پهلو نه دی لګېدلے — ستا پهلو به د رقیب آسان ورنه کړم
که یو ځل مې د استا زلفې په لاس کېبوزي — یو وېښته به دې په درست جهان ورنه کړم
څو نه وینم ستا سترګې که خداے کړه — عزرائیل له به همره ځان ورنه کړم
معشوق د عاشقانو دین ایمان دي — زه به چاله خپل دین ایمان ورنه کړم
ستا زلفو پورې نورے زلف څه دي — په خاشاک به د چمن ریحان ورنه کړم

په رحمٰن د استا د لبو مئې حرام دي
څو د خپلو وینو جام تاوان ورنه کړم

د یو څه رنګ ژوندون دے نه پوهېږم — خواب و خیال دے که افسون دے نه پوهېږم
جام د مے چه د ځان په وینو مومم — ترو لال که جګر خون دے نه پوهېږم
د پتنګ او د بلبل تر میان حیران یم — مخ د یار دی که ګلګون دی نه پوهېږم
په شانه سره د تار د زلفو بیل شه — که غوڅ شوے مې تارون دے نه پوهېږم
عشق په هسے رنګ مقام باندې قایم کړم — چه وصال دے که بېلتون دے نه پوهېږم
د خپل زړه و علامت و ته حیران یم — چه مونځی دی که تارون دی نه پوهېږم

د رحمٰن چهره دے زیړه تر زعفران کړه
خداے زده عشق دی که طاعون دے نه پوهېږم

بیا د لوی شراب څښلی دی پوهېږم — په رخسار د د ګل کړلی دی پوهېږم
که هزار ځله لاس سره کړے په نکریزو — تا زما په وینو وللی دی پوهېږم
معرکه زما د مرګ ده نور څه نه ده — رقیبان چه د تا یاسیلی دی پوهېږم
څه حاجت دے چه د خط په ملا لولم — چه زما په باب د کښلی دی پوهېږم
ته خپل جور و جفا څه له وائې ما ته — ما هغه واره لیدلی دی پوهېږم
چه رقیب او د تا غوږونه وبله د رورد — ما هغه ساعت اورېدلی دی پوهېږم

رقیبان خکه تېری په رحمٰن کاندې
چه تا خوار پورے پېرلی دی پوهېږم

په ليمه کښې مې مدام — عکس ګرځي د ګلفام
توره ستر ګې مې ګلګون شوې — په آرزو د ګل اندام
بې د ستر ګو له خونابه — نه باده لرم نه جام
په طلب د دلارام کښې — ما ولیده نه آرام
زنخدان يې خدايه کوهي کړه — ورخوشي مې په هر ګام
که يې خال د مخ غلام دے — زه غلام يم د غلام
که په عشق کښې ناکام ويږدي — دا ناکام دے زما کام
خوښ يم زه په عاشقۍ کښې — که نيک نام يم که بد نام
په ياري کښې مې قبول دي — ملامت د خاص و عام
د دعا په عوض غواړم — د خپل يار د خولې دشنام
ترڅ ګنګلو به يې څار کړم — د غه خپل دعا سلام
تلخ ګفتار يې راته خوږ دے — تر کشمش و تر بادام
هم هغه مې مسيحا دے — چه يې دا کاندے سلام

مخ د يار ماه تمام دی
رحمن وليده تمام

څو به صبر په جفا د يار کوم — څو به موم د نمر د مخ ته ګرځوم
عاشقي او صبوري سره دروغ دي — زه دالا في په دروغ څه رنګ کوم
ته و ما ته نصيحت مه کړه ناصحه — زه دا خپل تخم خپل ځان لره کرم
ما خو زده چه مينه او درد خدای مېن کړم — دانسته څپرو اور ته آچوم
سرشته مې خدای د يار په لاس کښې ورکړه — په هر لوري چې مې راکاږي پسې ځم
د آشنا ميني رالس زما ګريوان دي — زه په دا کار کښې هيڅ عذر نه لرم
عاشقانو باندې حق د معشوق دے — حق به ورے په باصله مبد لوم
ما چه قرض په خپل ځان کړو د يار مينه — تر له قرض غاره څه رنګ غړوم

دا څه ژړند دے چه يار نه وينم په ستر ګو
زه رحمان په جهان ستر ګې غړوم

چه له مرګ بې پرواه يې په هر دم
دغه هسې غم ډهير دے په کوم غم

نور همه واړه غمونه به ډهير شي
که يو غل در بانديِ را شي دا ماتم

چه زخمي يې صبا نه مري په بيغ
مدت مرنده شي نن ساعت هغه مرهم

د مرهم طياري در لره بويه
چه لا نه يې د اجل په تيغ کرم

چه دتن له سرائ درومي تونبه واخله
تر دا سرائ په هورته سراي نشته محکم

دده لاره تله هسې آسان نه دي
مشکلات دي په هر دم په هر قدم

که دې ويره شي له ظلم له ستم
ته هم مه کړه په هيچا بانديِ ستم

که اميد لرې له رحم او له کرم
ستا هم بويه په هرچا بانديِ کرم

له هرچا سره چه کړې هغه به مومې
د هيڅ تخم ميوه نه درومي سر هم

اجر واړه دَ عمل په اندازه دي
دغه دواړه سره يو دي هم درهم

اوس ده ستا رضا نيکي کړې که بدي کړې
نيک و بد دواړه کښلي شي په قلم

خدائے د رزق په زيرمه مه هيره وهلکه
ترسري د سري رزق دي مقدم

که ګڼه چه په حرص سره زيات شي
زيات به نه شي ديره ستني ترسم

که هزار رنګ و حرص و تردد کړي
د قسمت شي به نه کړي زيات و کم

د پير هوا د حرص مه کوه خدای ياد کړه
ده کافي دي تر عرب و تر عجم

په تا فرض عبادت دَ خپل څښتن دي
نه لنګرے خزانې ملک و حشم

څوک دَ ودې يوه ګړي در لره بس ده
نور همه واړه اسراف دے مسلم

له خوراک غرض توت لايموت دے
نه چه غوښې غوړي وريجې يا غنم

له پوشاک غرض خپر پټول دي
نه اطلس و سقلات تاج و علم

که حرص در بانديِ زور شي مرګ وياد کړه
دا علاج دي دغه رنځ لره محکم

ولحد د تاريکئ علاج به څه کړې
چه ته دلته کښې ويريږې له تور تم

غفلت هيڅ مناسب نه دي له پېين زېريو
خوب روا نه دي په وخت دَ صبحدم

مار چه مورږي لرځ ورشي کوږ سم شي
ته د کور غاړه لره راغلي نه شوې سم

خم قامت د دنيا کار کړې عمر واړه
او په دوه رکعت نفلو نه شوې خم

ځان په خوا ترهغه د ژاړه که مردئ
چه په تا بانديِ ژړا کاندي نور عالم

نور عالم چه په تاڅاري انصاف وکړه — بې انصاف ته په څه ئې خوش خورم
کندۀ نه وايم ته خود ستر ګې رنړې کړه — کوردې خورشه ته چار پائې يې که آدم

اې رحمانه لکه ته چه په خدائې کرم يې
بل به نه وي په جهان کښې هسې کرم

که په سر د هغه يار لره له لاس سنګ خورم — خدايه ډې نه کا چه به بله خوا ته سنګ خورم
عاشقي د ننګ د نام دي سره لرې — څو به عمر دا په غم د نام و ننګ خورم
خدايه ته و ما ته شيرين کړه تر شکرو — که د يار له لاس غشي د خدنګ خورم
د آشنا د بېلتانه په کاروبار رکښې — هميشه په تندي تور د د فرنګ خورم
نوکري د مخ تو په عشق کښې — مهيني نه د بهلول نه د اورنګ خورم
ښين لوګي م په سر چتر د دنهه تخت دي — ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم
هم به دا چه له خودي شم بېخوده — د هجران په غم کښې لپې لپې بنګ خورم
لکه څوک چه نعمتونه د دنيا خوري — زۀ د يار د کوڅې خاورې په ارنګ خورم
داره زهر شي زما تر ستوني دردمي — بې له ياره که همه لاچي لونګ خورم

زۀ رحمان به څو ژوندې په دنيا يم
چه په بلو لنبو څرخ لکه پتنګ خورم

که له مخ يوه خوا کړه حجابونه — خدائې به ورکا د خوبانو ثوابونه
که دي په يوه رنګ د هغه يار شي — که هزار شي په آسمان کښې آفتابونه
په ګرداب د زنخدان ئې هسې غرق يم — هيڅوک مه شه غرق په هسې ګردابونه
لکه زۀ چه ئې له غمه په عذاب يم — خداي دې نه ږدي په چا هسې عذابونه
ګفتګو م هيڅ اثر د رباندې نه کا — که له غمه يې تصنيف کړم کتابونه
به يوه خواب م ردکا هزار ساله — هسې کاندې د سوالونو جوابونه
هيڅ پاياب د زنخ فريب ئې مونده نشي — څوک به څه غواړي د بحر پاياب ونه
که بن ستر ګي د بله کيږدم راته واني — په يار دي کښې عالم ديګه خوابونه
مال و ملک ئې همه وارد او به يوسي — د هغو چه څې له ښه وسيلا بونه
منع هاله پارسائي نه وولاس ولي — چه به زۀ کړه طريا نو ربابونه

ارغواني جامې اخوندي رحمانه

بيايې جوړ کړه ستا د قتل اسبابون

راکوي د بيدردۍ پېغورونه    بلوې مې په تندي باندې اورون

نور څه نشته دا ره ځوبه دي د زړونو    چه وژلې شي د ترکو په تيغون

هر نګاه يې په رګونو د زړونو شيږ دی    هميشه را باندې آزمائي زورون

خدائې دې تورچاته د توره ستر ګو نه کا    عالمونه ورکيږي په تورون

يو د حسن اور دې بل کړه په جهان کښې    په دا اور باندې دې اوسوه ډېر کورون

زه د يار په مينه غل کړم رقيبانو    ګنړه نورځې کوم را پورې دي تورون

د رحمن د عاشقۍ هسې غبر و شه

چه برپا ئې شو په هر بنهر کښې شورون

په خاطر مې غلبه شو ستا غمون    لږ د خدای د پاره کيږده قدمون

څه خو تياس زما د پيروا و بنکو وکړه    چه په تن کښې مې و دچړې دا رو ددن

هرچه ستا په دم ژوندي دي نه رغيږي    که بې تا په ځان پوکې هزار دمون

که هزار هزار د مونه په ځان پوکا    نور به نه په دمونو قسمتون

له قسمته خلاصيده د هيچا نشته    که داخل شي د مکې په حرمون

سړيه که په کوشش ترڅايه رسي    غور د خدای د لوري نه د و کرمون

چه توانګر د قناعت په خزانه شي    نور به څه کاندې ديناد و درمون

قسم خوري له خوبانو بيا ئې مات کا

څه باور دې د رحمن په قسمون

ژوندي کاندي د دنيا کاروبارون    په مرو پريوانه د خاورو انبارون

څوک سر تورېنې ابله خاورو ولړه دروي    چا کانړه دي پيراينې دستارون

بنه استوګنه د دوه روڼ و سره نه شي    بلکه اخلي يو تر بله آزارون

ديوې ګنه له بناخ پيدا کيږي    په چمن کښې هم ګلونه هم بنارون

همه خلق هره ترځ له دنيا دروي    چيسه نه په چا حسا شي نه شمارون

چه يو وار دي په هر چا باندې تيريږي    د پېرلي له مخ دوري بارانون

ډیرله سره یم توکی بازارکی تیر دي     څوک دِ نهٔ کا په ما تیغ و بازارون

جدائي دَ آشنایانو هردم کاندی

په رحمٰن باندِ د توردِ ګذارون

دریغه ګُلیدے یوځل هغه مخون     چه دیا زلری مژګان درازتدون

دیازتد درازمژګان درازی زلفی     وړه شونډے وړه خوله واړه ښائښون

دآسمان شمروته به ترے قربان کړم     هم دَ زمکے په سرداره سره ګلون

چه ئے وړینم په مخ م اوښکے دردمی     د پسرلی دَ مخ وریږی باراون

که یوځل ئے مخ وړینم په سترګو     ماپه زړه کښ قبول کړي دی نذرون

دهجران په شپه سورکیږ راته سورا ورشی     یو زمان م باندِ نهٔ لګی ارخون

چه په پیښوانګو دِ زلفِ زانګی     ښاماران دی دَ چِند نرد په ښاخون

که خدائے غم دَجدائیؑ درته آسان کړه

و رحمٰن وته آسان دی نورغمون

که ستا خپل سیه روئیؑ نهٔ وی دښمن     آئینه زما د زرهٔ نهٔ ده څخنَ

ته چه ما وته دَ غیب په نظر ګوره     دغه واړه غیب ستادی اے غیب ژن

خپل صورت په آئینه کښ هر څوک ګوری     که چهره دَ چا صفا ده که ږیرن

چو هاری دهلال خوریه ناصه بولی     د ښو خلقو بدګویئ نهٔ ده ممکن

ته چه بدله بله واڼ زهٔ دیریږم     چرے خپله بدی نه کړے معین

ترهغو به ورمی ستا غیب څرګند شی     چه هرچا وته دِ کړیده خندند

هرچه نحه تخم کړه هغه به یوسے     خپله خپله میوه بیی هردونَ

که له خپله غیب ځان ژغورے رحمانَ

دَ هیچاله غیبَ مه کوه پوښتن

ما دِ زهٔ به نهٔ کړم په خوبانو باندِ مین     مینه د خوبانو رچوی د صورت وین

خدائ زمائه بخره عاشقی کړه له ازله     خوښ یم په دا بخره که ترخه ده که شیرین

زهردی که تند دی هم په خپله خوله څرګند دی     نه مومی څوک خوند ذیل د خولی د انګبین

زمکه هغه سوزی چه په سرئے اوربلیږی     دوغه خلقه شوه د رنځور رو تماش بین

بې توبه یم نه شي په تش دا د کور د کلي      مرد بوید چه داخلي دَ غم پیټه له غمګین
نور عالم به ښه کړم زهٔ مرید دَ هغه کس یم      هر چه ما و را کا یو پیغام له نازنین
ځو به سوک په سترګو غروم له هسې غمَ      ځو به یم تل ځاځي دَ غم او بنګې له آستین

سره رحمٰن دردمي دَ هجران په تیره توره
ته یې نګهبان شې یا اله العٰلمینَ

څرته دیار شونډې څرته غم د دل و جان      څرته کوتي لال او څرته لعل د بدخشان
پاک و منزه دي عشق د نفس له خاصیتَ      څرته چاه د کیمیه څرته چاه د زنخدان
لږ تفاوت نه دے د رندئ دَ زاهدئ      څرته زلمي ځوانه څرته کونډې یتیمان
دا به بیوقوفي چه څوک دین په دنیا پلوري      څرته نخه ورځي څرته عمر جاودان
زار شه هوا و حرص خیال تر قناعته      څرته ملک د مصر څرته ده غلامان

نه شي دَ خانانو دَ مسنګو سره کلي
څرته عزیز خان څرته ملنګ عبدالرحمٰن

که پخوا ترا آشنائي نهٔ وي بېلتون      ما به نهٔ وه له چا کړي پیوستون
چه یم یار په سترګو ولید ما ګمان کړه      هم په دا ساعت یم بیا موندهٔ ژوندون
په نیمګړي دا دخبر د ملک نهٔ وم      چه به بیا شي په ستنه راڅخه ستون
ن ساعت چه له دي حاله خبردار شوم      سکه ترنن ورځي بهتره ود پرون
هر زحمت چه په ما راشي شکرانه کړم      عاشقئ تر هسې حده کړم زبون
اوس که لاس زهٔ ویله مږم هیڅ سود نه کا      هغه چاره چه له لاس شوه بیرون
ګله نمر په څلورم آسمان ځلیږي      محبت یې له حجاب کړم بیرون
چا چه نبه له بنه مخ را کوله      اوس دې سود په نیلي ګرزي د ګردون
په دا هسې حال کښې څرنګ صبوري شي      چه دښمن دې کامراني کا تهٔ محزون
که په صبر سره تور کا نري لعل کیږي      لعل نهٔ په دا هسې جګر خون
د دنیا هوس په ما باندي حرام شه      د هوس هسې کړم شپه په میکتون
دریغ یو ځل هغه زما په حال شوے      چه ورماو ته لوے صبر و سکون
ورحمن ته ځان هغه کړمي آسمان شي      چه دا ستا په غم کښې ناست دي سرنګون

که تېر ولو شته شاهان و سلطانان … هیڅ نیمګړې په چا نه شه دا جهان

که هزار هزار فنا شي په یو دم کښې … بیا پیدا شي په یو دم کښې هزاران

د رفتن د آمدن حساب یې نشته … لکه بحر چه څپېږي بې پایان

یو دیل په غم نه نرم وي نه ګرم … هم د هغه زده چه ورځي وي په ځان

پیغمبر غوندې صاحب له دنیا تېر شه … دا دنیا ویرانه نه شوه په هجران

چه دا هسې عالم لاندې شه تر خاورو … د چا یاد دي ما و تا غوندې سګان

که غلبیل کړم د تمامي دنیا خاورې … بیا به نه مومم دارا و شاه جهان

بوی د نام د نښان یې پاتې نه شه … چه دعوه یې کړه د نام ود نشان

که د دروغ دایم ته ورشه نظر وکړه … د خپل پلار و د نیکه په ګورستان

چمنې ته په دواړو سترګو ښکلو یې … کوره څه شوې هغه خولې هغه لبان

چه مدام یې په قربان قربان ښکلې … اورس دې غېږ در باندې وکا چه تربان

د رحمٰن و سوزان شعر ته حیران یم
چه یې اور بل کړې نه دې په دیوان

فراموش به کړه دا ستا په مینه ځان … ځان زاخته دی بلکه عمر جاودان

لکه زه چه ستا د درد په خاورو خوښ یم … همره عیش و طرب نه لري شاهان

لکه زه چه ستا د غم پندو ونه اخلم … همره پند اخستي نه شي پهلوان

هسې بې سر و سامان یم ستا په عشق کښې … چه آګاه نه یم په سر و په سامان

هسې بې شرابو مست یم ستا په مینه … چه خبر نه یم له ځمکې له آسمان

دا به څرنګ شي چه ته د کال وعده کړې … په ما نه تېریږي بې له یو زمان

تمامي عمر دې ستا په طلب ورک یم … لټوم دې په هر ښهر په بیابان

که له دره یې شړې که یې پرېږدې ته
دېر مېن دي ستا په مخ عبدالرحمٰن

ته چه هسې ګاه یې ترش ګاه یې خندان … له عاشق سره کینه کړې که احسان

له احوال د چا نه زده چه به څه کړې … کله جور کله لطف کړې عیان

رنځ راحت د عاشقانو وار په ته یې … دا دروغ دي چه وصال مې یا هجران

هغه شونډې چه خوږې دي ترش کړو — له بنګنځلو ئے عار نه کا عاشقان
رجوعات د بنایسته و چا ته نه دی — هرګز نه دی سرکوزی د سروشان
دغه هسې رنګ بنایسته لکه چه ستا دی — نشته دا رنګ بنایسته د هیڅ انسان
قصد تر هسې حده وله کړے ګلرخه — چه له ډیره نازه وژلی عاشقان
وهر چا ته چه ستا قوت د سیږی — هلته نه رسی قوت د درست جهان
شاله جوره زهره نه لری چه آه کا — که کشور د عاشقانو شی ویران
خوار حیران لکه عاشق مے ستا له درده — خدائے د هیڅوک هسے نه کا خوار حیران
لکه د پردائی د وصل با حسرت نه — د غم هسے د فرقت مے سخت زندان
د رخسار نخه د داره د خورشید دی — چه ئے درست جهان نوره مے روښان
له هوس د هر ګل کړه خندا شوه — چه ئے ګلید ستا د حسن ګلستان
کله وی چه نصیحت کاندې عاشق سته — که له حسنه د اګاه شی زاهدان
رنګ درودی د لری رنګ د سرو ګلونو — توره خنړه د بنا خونه در ریحان
سیاهی د نوی خط د هسے ریب کا — لکه بنګلی داره توری د قرآن
وکومی ته چه لغزش ے کاکل خطر دی — کل حیرت دی د کومی ستا د زنخدان
که د درو تجلی ده ډیره ډیره — درتاریک شی په ظاهر ستا دندان
ته سلطان د بنایسته رویئ دلبره — دا نور وانه بنایسته دی نوکران
که دا نور بنایسته ستوری وسیل کیږی — ته خورشید غوندې صورت لره روښان
له هر چا چه اوریدے شی دغه وایئ — چه بنایست د ذره نه لری نقصان

در و لعل شو ویل درحمن څکه
چه دا ستاه لعلو شونډ و شکویان

شو به شمیرم زه نمونه د هجران — همره ډیر دی لکه ریګ د بیابان
دسری دوښمنی طاقت م نه دوه — خدائی را پیښه دښمنی کړه دا آسمان
لکه څوک چه دا دښ بار په میږی کیږ دی — هسے زه یم په خپل غم پورے ناتوان
لکه اور د بیلتانه چه په ما دوری — چالید لی کنږه اور د مے په دا شان
د یار غم به م هغه سرے په شمار کړی — چه شمیرلی ئی ریښته وی د خپل ځان

که څوک واۍ حال د ښځۀ دی په هجرا کښې    په خاطر د تصور کړی دوزخیان
ناقرار روح یم د یار په هوا والوت    نش موندم ځانته پاتی شو حیران
د یار دم یم زرۀ په غمو سترګو یوړه    چه په عشق زما دا عرش کاندي ویران
عاشقئ يي ترهغه حده بیهوش کړم    چه نه هوش لرم نه سرو نه سامان
لور په لور يې د تهمت په فوتنو ویشت شم    ملامت را باندې واڼي درست جهان

چه دا حال ور باندې نه وی ورغلی
په وئیل به څه کړو هیڅ ی رحمان

در که عاشق شه هم يي نوم هم يې نشان    زړۀ نه هسې خوار کړم لکه خاک د بیابان
زړۀ د حسن په کار کښې تیر تر سره هم تر مال یم    دریغ که په سر یم دا مشکل که خدای آسان
کښیوتم د عشق په آدم خوړو ګردا سیو شو    نه په وړاندې تلی شم نه په بیرته ګرځان
رنځ د عاشقئ چه زړۀ ظاهر کړم و طبیب ته    هیڅ ویلي نه شي طبیبان و حکیمان

را شه عاشقي مه کړه رحم نه او که نه وی
تل په اور بهٔ ستي ئي که بادشاهي د جهان

خان سلطان د دې جهان    آخر درومي خوار حیران
د قضا په څیر ترلي    په مثال د بند بیوان
شیرین ځان ور ځخه دروي    نه ئه زور شي نه يې توان
که شبندی مال و ملک واړه    هیڅ رنګ نه مومی امان
نه ئه مل نه يې حامی وی    درديي ورشي بخپل ځان
درمانده ورته ولاړ وی    وزیران و وکیلان
هیڅ دارو کولې نه شي    کوزکوز ګوری حکیمان
بادشاهي يې پاتی کیږی    زړۀ يي چوی په ویرمان
چه يي روح له تن بیل شي    نور پرې ژاړی فرزندان
یو ساعت ور باندې ژاړی    آخر صبر کړی خواران
بیا ئي غسل له واخلي    په تخته باندې عریان
په جامو يي خوشحالیږی    مرده شو او غاسلان

چه له تنه بره يې بازګشت شي　　مال يې يوسي وارثان
په مسند يې دعوى کاندي　　هم دوستان هم دښمنان
سهيلۍ يې تالا کاندي　　هغه خپل مصاحبان
نوم نشان يې هسې ورک شي　　لکه نه وي بې نشان
نه يې نقش پاتې کيږي　　نه يې اسم په جهان
دا دنيا آب روان ده　　نه شي نقش په آب روان
که هزار رنګ آبادي کا　　نهايت خانه ويران
لکه باد هسې به تير شي　　هغه دور هغه دوران

دا بيان دور و دراز هسې
کوتاه قطع کرد رحمان

که هر څو په صحرا سر شوم هم په کليو　　بيا م نه موند هيڅ خبر د هغو تلليو
خدايه زه کوم خواته لاړ له حال يې خبر شو　　خبر نه يم د کرنګ د پريوتليو
له دې غم م زړه څيري که څوک خبر دي　　لږ پيام خبر وکړئ خدائ ستا تليو
پس له دې به څرته درد م ځائ مرکوم دي　　راته واي د دنيا په سرئ را غليو
ګوندې ستا په مخ به زړه پسند يده شم　　لاړ د خدائ ورته نيئ پسند نه ديو
خبر نه يم چه په باب م ګڼلي څه دي
زه رحمن په انديښنه يم له دې نيکليو

تور ليمه م د فراق په ژړا سپين شو　　دوباره د زړه په وينو کړې رنګين شو
ما وې زه به لا ديدن کړم د يارانو　　خبر نه يم چه ياران په کوچ يقين شو
چا پتنګ غوندې ځان را چاوه وا ورته　　څوک ژوندي لکه بلبل په آتشين شو
ومړه ورته د مرګ خوارئ شوې هسې پېښې　　او ژوندي په ژوندتئ کښ اندوهګين شو
د قضا سپاهيان هسې لاس په تاخت کړه　　چه پائمال هزار خسرو هزار شيرين شو
چه قدم يې په آسمان اېښود له نازه　　هغه هسې ناز پرور زير زمين شو
چه مدام يې د سنجاب د پاسه خوب کړه　　اوس په زمکه بې بستره بې بالين شو
د رحمن خاطر به ولې پريشان نه دي　　چه پريشان ورځنې جمع همنشين شو

تا چه رنګ د میوو ور کړو و لبانو — اور دې پورې کړو په کوره مئي خوارانو
چه دې جوړه کړه لینده د کږو وروځو — خوب به ښکار کړي په حرم د غزالانو
چه دې دام د زنځیر په زلفو کښېښو د — معطر دې کړه دماغ د دیوانګانو
رخسار چه د خط غبار خرګند شه — سربلند شوه نرګس د خاکسارانو
کابه عشق دار بېرته ځي له نښې — زه آزار کړم ستا کږو و کږو مژګانو
چه زما دیار ترمنځه جدائي کا — کانړې پریوځي په خونه د بدانو
که مې چېرې خواست د خدای په در قبلیږي — سوال به زه د غم کړم د مهوشانو
سور پېزوان دې په سره شونډه وهي زیب کا — لکه جیم په قلم ښکلي کاتبانو
د سرو تیک دې شهزاده په جبین پروت دی — ښکلي خال دې حاصل په بندیوانو
د داړه پیچې دې د کنډلي مصرې توري — در پوهیږم سر به پرې کړې د خوارانو

ستا له غمه په ځان زړه د رحمن سوزي
لکه شمع په زیارت د شهیدانو

چه کوشتلي دي په تیغ ستا د چشمانو — سر حلقه دي د جمله و شهیدانو
ستا وصال د سر پرېکړو دی دلبره — ژوندي نه مومي جنت د مردکانو
د پېري سوري عاقل له ضرر دی — دا مقام دی د سرتورو دیوانګانو
په سرپوښ محل کښ نور د آفتاب نه دی — دا دولت دی نازل شوي په ګداګیانو
هم په دا زمانه سترګو وینې څاڅي — چه د نقش پکښ رنګ دی د لبانو
مشکین خال په سرو لبو دې زیب کا — لکه مهر په مخزن د درمرجانو

ما سوی له یاره هر چه دی رحمن
دا ره کفر دی په دین د عاشقانو

هر ساعت زما د غوږ په تاو دلو — د فلک لاسونه څه شو تر څنګلو
هر د غم د بېلتانه را باندې راغی! — چه خنائي نه په خوله شي نه په کښلو
هغه سترګې چه نرګس د هم بادام دی — تېرې توري دي زما په قتلولو
هغه شونډې چه شیریني دي ترقند و — ما هیڅ فیض څخه بیا نه موندلو په ښکلو
دا کاږه کاږه بانړه او کږې وروځې — نور څه نه کا بې کږو کږو وهلو

پرشه نوکي د عاشق په وینو سره کړه — صبا پوره کړه نکریزه په منګلو

دا زما د قاتل لاس دی نه پوهیږم — که تر باغ وتلی بناخ دی د سرو ګلو

دریغ مرګ یې په دنیا کښ نیمه خواشوی — بنائسته غنچې یې پریښي د ګلګلو

هسې بند شه په کمند د تورو زلفو
چه حیران یم د رحمٰن په خلاصولو

بیا دې مخ دی چاروتلی څه بلا شوه — دا بلا له کومه لوري را پیدا شوه

دا زما په یار کښ مهر وفا نشته — که دنیا واړه بې مهره بې وفا شوه

چه یې هیڅ له خدایه ترس و ویره نه شي — په نصیب م یوه هسې دلربا شوه

چه یې حسن وته ګورم حیرانیږم — د اخر ګنده یوه هسې تماشا شوه

څه د حدود حساب خبره نه ده — بې صبري م تر حساب زیاته لا شوه

قراري م په طلب یې کښ حرام شه — بې غمي م په مذهب کښ ناروا شوه

چه راکښلي م پرې غشي د دعا وه — هغه نښه م و نه ویشته خطا شوه

لکه بوج باد م بې مغزه بې حاصل — هسې پوچه بې حاصله م دعا شوه

عاشقي چه م له خلقو په غلا غلا کړه — هغه غلا م په تمام جهان رسوا شوه

څه بهره به له نسیه معاملې مړو م — چه م نقد په دروغو کښ نسیا شوه

درد بې تره جار و توشه را ته پوره — په نصیب م بله نه وه دا وه دا شوه

یوه بخره هر سړي له خدائے ورکړه — زما بخره آشنائي د خپل آشنا شوه

د تدبیر په دام په څشکه کښېوزي — معشوقه چه م په مثل د عنقا شوه

چه یې زر کړو زیږ رخسار زما د خاورو — عاشقي نه وه په باب زما کیمیا شوه

څه حکمت د یار په سینه کښ خدائ کېښود — چه عاشق له م درد شوه هم دوا شوه

د باران نه دي چه ورې له آسمانه
د مرغانو په رحمٰن باندې ژړا شوه

هسې زه یم یاره ستا په غم تازه — لکه وي هر ګیاه په نم تازه

ستړي و خیږم که یې وچي کړم له نمه — که م شي په دا ژړا صنم تازه

زه به څه کړم د چا چارې بې له یاره — هر سړې دی په خپل ساه په دم تازه

دیار نوے نوے غم زیږدی وصل　　رغوی سوی پرهر مرهم تازه
که د زړه له غم وچوی دنګیرمه شه　　کاتبان که په چرن قلم تازه
بنا یته یاران ګلونه دی رحمن
بلبلانه کړه اګر مراوی کم تازه

دیر عمر می تیر کړه بیهوده په زمانه　　نور روز ماسروی او د ترکو آستانه
هیڅ می حاصل نه کړه په شیخئ وپه تقوی　　پس له دی می واړدی هرچه شی په میخانه
شیخ د شیخی ورد وظیفه وذکر فکر　　زه وساقی جام وباده چنګ وترانه
زه زاهدانو ته حیران یم دوئ و ما ته　　دیوانه بد ګنډا وده بدیوانه
ګنج د عقل زار شه د عاشق تر شاڅکی ادبو　　نه خوراد عقل نه د عشق یوه دانه
تیر دیاره لاس په مری د عاشقانو　　هسی لذت که نکه د میو پیمانه
خدای له لړ به وړشم په سودا د یار له مخ　　بل مقصود می نشته په کعبه په بتخانه
زه له ویره مینځ په تش بوی دیار شیدا یم　　تل دا و بوختوا وبه لږی دی بهانه
څنګه زاهد زهد کاریو جنت دپاره　　سربندلی نه شی په اوربل د جانانه
کوره د منصور هسی په دار نه شی رحمانه　　مکره دا د عشق خبری مستی رندانه
بل نام و نشان د عاشقی نشته رحمانه
بی نام و نشان شه که یی غواړی نشانه

په حالت د عاشقانو نظر بویه　　په زیارت د شهیدانو ګذر بویه
بی مرشده څوک خبر د مریدا خلی　　عوض په غم د فرزندانو پدر بویه
بی رببا ره رسیده و یار ته ګران دی　　په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه
بی هنره چا دولت موندلی نه دی　　په خدمت د صاحبانو اثر بویه
شاله سترګو می هر ګور ملاحظه شی　　له دی هسی سیاه دلانو حذر بویه
سنه چه سترګی خدای ملالی کړی د ترکو　　لږ په زړه د ظالمانو اثر بویه
تا په داغ به هر یو زړه مشرف نه شی　　دغه تاج د عاشقانو په سر بویه
چه خبر د رحمان نه اخلی یار ید کا
بادشاهان له ګدایانو خبر بویه

مخ د يار شمس و قمر د ريواره يو دی — قد و سرو و صنوبر د ريواره يو دی
حاجت نه لرم په شهدو په شکرو — لب د يار شهد و شکر د ريواره يو دی
که بې ياره په بستر د پاسه پروت يم — نار و خار وی دا بستر د ريواره يو دی
چه يې در وهم ديوار و ته نظر کړم — باغ بوستان و دغه در د ديواره يو دی
خدائ د يار له هجره هيڅوک خبر مه کړه — تاخت و تتل دا خبر د ريواره يو دی
چه غبار يې د کوڅې رابندی راشي — دا غبار مشک و عنبر د ريواره يو دی
هغه دم چه سر په دردمی له جهان — توره خاوره سيم و زر د ريواره يو دی
قلندر چه پرښتيا قلندری کړه — خان سلطان و قلندر د ريواره يو دی
درد نه غږي په پردئ زمکه هيڅوک — کور و کرو مصر د ريواره يو دی
چه د نه پکښې يو يار نه د آشنا دي — هغه ښهر عجر و بر د ريواره يو دی
په دکان د نابينا و جوهر بی نو — خر مهره لعل و گوهر د ريواره يو دی
پيران د غار زمانه عشق نه کا — پاک عاشق پير پر د ريواره يو دی
په سبب د ظالمانو حاکمانو — گوره دا داد و پيغور د ريواره يو دی

غزا د شوه کم خان ستايي ورحمن تر
بې هنره گاو و خر د ريواره يو دی

ستا له غمه مي په مخ باندي ونې دی — لږ مې درپوښته له حاله چه ولې دي
زه په تا پسې موسئ يم قارون نه يم — چه مطلب مې غوا و غيلي يا کمکي دی
هغه کوړی نکه تا دې په ما کړي — نکه کړي په مجنون باندې ليلي دی
نکه ما چه مصلی د ربې لنگ کړې — کوم ملنگ هسې لنگ کړې مصلی دی
بوی مې ستا د وفا نه دی دا الوقي — ما چې چله کړی خپله تسلی دی
نصيحت اثر په زړه د عاشق نه کا — که ني يادی زما پيری مسلی دی

که رحمان د عاشقئ په تيغ شهيد شی
د جنت حورې همه واړه د لې دی

خښ مې ستا د ښه و غږي په سينه دی — پورا پورې مې د تلی تر آئينه دی
تل يې مخ د يار په مخ باندې وی اينبی — هغه زړونه چه بې رنگ آئينه دی

هسې نه چه زړه مې ورځ پر تا شیدا یم — ستا غمونه مې په زړه کښې دیرینه دي
که ستوري چه بریښنا کا په آسمان کښې — په تندي مې ستا داغونه نګینه دي
درته وایم چه له آه وئي پرهیز کړه — دغو چه پوشاکونه پشمینه دي
که دا ستا رخسار سوزاني لمبې نه وي — ولې کښې زما تور سوي سینه دي
څه به هم په مسجد مې کوري وچا ته — چه دې سترګې په مؤ مستې شینه دي
هغه سترګې چه پیدا کړې خدای خونریزې — بې غضب په غضب او په کینه دي
شرابیان چه شراب مومي خوئي شي — که منع په اختر په ادینه دي

چه تمام د خپل جګر په وینو رنګ شه
د رحمان خبرې ځکه رنګینه دي

سپین رخسار و مشکین خال و بله صنم دي — یا محمود و ایاز ناست سره همدم دي
که دې مخ په زلفو پټ شه باک یې نشته — د حیات او به دائم په تیاره تورتم دي
ستا د زلفو له رخساره له سره شوي نه و — پیدا شوي شام شفق و صبح دم دي
په دهن کښې دې غاښونه تجلي کا — یا غوټۍ په غنچه کښې د شبنم دي
نه چه اوس زما زړه غوښ ستا په غمزه دي — چاره غوښتې له قدیم سره په غم دي
بې ژړا چا نه دي کوري سیه چشم — د نرګس غوندې په جوړې په نم دي
راحت نه دې چا موندلې بې زحمت — ستا جفا وفا دواړه منقسم دي

ستا د حسن د تعریف له برکت
د رحمان د شعر کوکې په عالم دي

کاشکې زړه خاوره ایرې دا ستا د دره — چه قدم دې همیشه زما په سر وې
خوبو ګل زما ستا د بله مخ شوې — نور مې مرخه ستا د عشق په تنور وې
تمام تن مې د رنځو په څیر اره وي — خو په ما د سترګو تورو بو خطر وې
په زېړ رنګ په سپینو اوښکو به ما بیا موند — که د ترکو ملاقات په سیم و زر وې
ملامت به په ما څه له دا یه شه — که دا ستا د دلبرۍ نه خوک خبر وې
مرتبه که ستا د عشق شي ورځ ګنده — ملائک به واره وایي چه بشر وې
تماشا به زما هله ورښکاره شوه — که ته ما غوندې بېدل وزه دلبر وې

په خونبار به زما سترګو غوندې نه وه — که په مخ مې د تیر د توره پرهر وې
تا په درد کښې طبیب وائې و رحمٰن ته — لا به نه وه که دِ حال تر دا بتر وې

وخت د عیش و طرب تیر شه خزان راغی — زنګدن د بلبلانو په ځان راغی
دلداري مې تر امید وه باري څه کړم — هغه یار د دلبرانو په شان راغی
سود سودا د عاشقۍ که نفع مند وي — ما هیڅ سود پکښې بیا نه مړند نقصان راغی
تمام عمر که وصال وه همره نه وه — لکه یو زمان د ښکلیو هجران راغی
آشنائي مې په هوس وه خو چه بیل شوم — دواړه لاس مې وبله د مینوا رمان راغی
ګوئې زما د زړه یې یووړه په چوګان کښې — بیا د ناز په نیلي سور په جولان راغی
غنچه لب به په خندا نه کا پریشانه — په شیبو زما د اوښکو باران راغی

د میرزاد ارزاني دعوې به پری کا
قدردان د شاعرانو رحمٰن راغی

که د زړه په وینو رنګ د چا کوګل شي — چه بیلتون په جهان ګرزي خو به بیل شي
که داوښکو په دریاب باندې نهال کړې — نیشکر به نیشکر شي نل به نل شي
مشقت د سري وار د حبطه کړه — په ښوره کښې چه د ګل بوټي نهال شي
د دنیا یاري دوستي څه پکار نه ده — له اوله یار و دوست ري پسې غل شي
که هر څوئې وبله محروم محبت وي — نهایت سره په جنګ او په جدل شي
په مثال د دروغژني ملغرې — آب و تاب یې په دوه ورځې کښې بدل شي
که مې زنه د ځوانۍ په وخت کښې سیب وي — هغه سیب یې په پیرۍ کښې بیا حنظل شي
د رقیب له بد خویۍ بد څه وایم — ترو د اګوره چه لا یار و سره مل شي

زه رحمٰن په ښه په بد دیار پوهیږم
کاشکې زه په دهن د چا عسل شي

که د غم د درست جهان تر زړه د چا پیر شي — دستګیر مې شه هسې دایه چه به هیر شي
غم هغه دي هرچه سیر مه دي وچا ته — ورشي دایه تر ورستنۍ پوري هیر شي
بې له خدایه چه مدام په یوه حال وي — بنده کله شیر شاهي د کله سیر شي
یو آدم دي چه په څو رنګه جلوه کړه — یو رستم دي کله زور او کله زیر شي

د دنیا چارې مدام په قرار نه وي — د بنږو په زنبول به بل پېر شي
په لږ عمر کښې ډېر غم له کومه راغي — خوله خپله بې صبرۍ په سري ډېر شي
خریدار و فروشنده چه سره خوش وي — په سودا کښې سختي نه کا تېر د بېر شي

ښائسته په جهان ډېر دي بې حساب
باري څوک به د رحمٰن د یار په څېر شي

د سکوت په تیغ چه ژبه بریده شي — لا قلم غوندې په قال کښې دویده شي
همرد او رد عاشقۍ په زړه یوسي — چه لاله یې له تربت دمیده شي
خم ابرو یې د یار نقش په لمبه دي — لکه میاشت چه په لوئې عجز کښې لیده شي
همېشه یې د خپل یار په لوري دو وي — نهایت چه په دار و کښې رسیده شي
څه حاجت دے چه زړه یار وچا ته ستائم — کار همه د خپلو سترګو په دیده شي
که وي چه یو دبل په وښیل غلېږي — مګر صانه د چا خپله عقیده شي
خور څرګند وي که صبح په جهان کښې — هر ګریوان چه په یاري کښې دریده شي
ابرو یې د عاشق هلته ځان څرګند کړ — چېرې نم د زړه له سترګو چکیده شي
د آه غشي یې په زړه کښې لګي — هر قامت چه کمان توره خمیده شي
بې مطلوبه یې هیڅ فهم په چا نه وي — هر طالب چه په طلب کښې فهمیده شي
هر چه زړه په مهرویانو باندې بائیلي — بې دیناره و بې درم خریده شي
ما د یار په څېر بل مخ لیدلے نه دے — مګر پس چه له نن ورځې افریده شي

یا به شهد یا به قند یا به نبات وي
هر کلام چه له رحمانه شنیده شي

تبسم یې د دلبرۍ په روزګار شي — چه له مرګه نه ډېره نه دار شي
له ده وزیري د ده د ړاندو وسري — لاړے مینه د دنیا په کاروبار شي
که یې هر قدم د مریو په سر لار وي — یو قدم هسې وانخلي چه په لار شي
ډېر ویوند یو نصیحت پرې اثر نه کا — مګر مړه له قبره پاڅي په ګفتار شي
د امید مزرې یې هسې رنګ دراز وي — چه تر خضره ورته خپل عمر بسیار شي
سینه بزیره په اور نري کښې زړئ واخلي — چه به مالوه سپاهي وه صب دار شي

د خرمازي نهال کا ورته کوري    چه دا سوري دا میوه به م پکار شي

هر هر فصل چه تري ربي هم سبزي    چه په کاندي را ته بل فصل تیار شي

لاړي لپه تخم هم نه وي کري    ناکښته ورځني طمع د خروار شي

غرونډي د ناز کړي بو خپیو عزي    چه صبا بیګاه به مالوه کوهار شي

لکه وړکي کتوري له زانزې غواړي    په دا هسي پوچ کوښښ اعتبار شي

رحمان څه دي چه به پند وچا ته وايي
هدايت د هر بنده په کړ د ګار شي

چه دا هسي لاس په لاس دنيا پرغوړي    څه چا چند نر په ځان پوري منبودي

دا دنیا په مثال پل مرګ يي سیلاب دي    د سیلاب په مخکښې څه پوله ایښو دي

جل زلبي لا واده نه وي سره ګنډ شي    دا رنګ چاري د مرګي په خرخښبو دي

تا فلي چه په دنیا کښ شوي دا خلي    بیا م هسي معلومیږي چه دلښو دي

دا سفر به په هغو باندي آسان دي    چه تر کوچ مخا په زیرمه د توښو دي

چه بي رخت ارمان کا په رخت اوده دي    د هغو عالم زیري د وکښو دي

په هر شان چه يار خوښيږي زه هغه کړم    خپلول د صاحبا نو په پیښو دي

د یار غم م لکه تاج دي په سرا ښي    نور غمونه م هسه لاندي تر پښو دي

معشوقي په عاشقانو خورپو هسیږي    دلته څه د عاشقي نښي دښبو دي

میخوران که يي خبر شي له مستۍ نه
د رحمان د میخانۍ شراب د ښبو دي

ډيري خولي زما په ياد شکر خوري شوي    بيا زمانه خاوري ايري شوي

د چښنو نر ورکړي وسوليدي لاړي    هزار ځانګي د شمشاد و په اره شوي

په هغو زمکو چه روڼي پرمانړي دي    دا ايام په ګردشونو اديري شوي

په دنيا کښ چه بنياد د آشنايي کا    د هجران توري هغه لره تيري شوي

دا فلک خداي پيدا کړه دائي خوړي    چه وچا ته يي دعا چا ته خيري شوي

د دنيا د محلونو ښتي داره
ورحمان ته د سرونو مناري شوي

د هغې بنا چه نو م محنت آباد دی — ترو خاطر به ئې کښېني څنګه د چا بنا دی
په خرابه او په ښېنو کله وینې نیسي — هر مانعه چه په قفس کښې د صیاد دی
د رنځور په خوله کښې کله مزه کاندی — که سل رنګه نعمتونه ئې معتاد دی
پائې بته د لره هر چرته زندان دی — هغه هر چرته آزاد دی چه آزاد دی
عشق تغیر و تبدیل نه لري یکرنګ دی — د آشنا له لاسه داد دی که بیداد دی
د بنائې نښه هغه دی په جهان کښې — چه په یار پسې ئې بېخ و بې بنیاد دی
بودې هاله باله شي په معنی کښې — چه دنیائې په نابوده اعتقاد دی
نقصاني دي د دنیا عمارتونه — که تر لاندې ئې سل ښځې د فولاد دی
زندګي که څوک په هیڅ ئې حضور دم دی — آئینه ورنه کله د چا پیاد دی
دا دنیا لکه سیلاب همسې بهیږی — نه ئې چا څخه استوګنه نه استاد دی
چه کامله اراده لري په زړه کښې — د مرشد له اشارت بې ارشاد دی
و هغوته چه خدائې خود بڅپله وښود — څه حاجت ئې په ښود و د استاد دی

د ډیر یاران ورځنه بېل شو هیڅ ګرم نه دی
که رحمن له جدائي نه په فریاد دی

چه په مخ باندې د اوښکو یو ترشم دی — عین د تورو له پرهاره سره سم دی
که ګریوان مې د سپوږمۍ د عمر مشرق شي — زه چه یار په سترګو نه وینم تورتم دی
د لته سر پورته کول د چا رسیږي — چه بڅپله دیار زلفي خم درخم دی
ګړد ورو څو غوندې نیشر وهلی نه شي — که پرته د پاسه پروت د چا لړم دی
معشوقه چه د عاشق په غم وي غوڅه — د عاشق سترګې د ورزی چه بنیم دی
همدمې د دوه همدمو همسې بویه — چه د دوارو همدمې په یوه دم دی
که درست جهان بنادي و ربا ندې راشي — مګر خندنه چه څوک بې یاره خورم دی
بل ستم د بېلتانه د پاسه نشته — که لیدلې چا په سل رنګه ستم دی
د استغنا چه تر قاضي موقوف نه ده — خود بڅپله یار ترباره پوره کرم دی
راحت هر چېرې هغو پورې لازم دی — چه په درد و په محنت کښې مقدم دی
چه خوناب ئې د چشمانو میوه ناب شي — پیوسته له د غه جام سره جم دی

هیڅ حاجت د هنر نشته ورقیب ته — که په اصل کښې عرب دی که عجم دی

هنر مه غواړه طالع له خدایه غواړه — څه په کار بې سلیمان که خاتم دی

د رحمٰن غندا په اجر د ژړا ده

تازګي د ګل په قدر د شبنم دي

تل دې ستا د خواب آلودو سترګو خواب وی — چه فتنه په خواب اوده شی ده ډیر ثواب دی

لکه مئی چه په مینا کښې تجلي کړه — نو به حسن په حجاب کښې بې حجاب دی

ته چه مانه لولوی پټنځی د صبر — زه هم ډیر په دا راضی یم که مې تاب دی

زه په دا سبب په ترکو پسې ژاړم — چه ژړا د عاشقانو مخ آب دی

که نادان دی هم دا هره خو پوهیږی — څوک چه نه ژاړی په یار پسې کذاب دی

د عاشق سترګې په دا سبب شوې پاکې — چه مدام د جوی په سر لکه حباب دی

له خالي خونې به څه وړي چه څه نه وی — که ختلی د حباب په سر سیلاب دی

هم په دایي د نغمې اثر پیدا شه — چه په نشه کیږده صبر د رباب دی

له حریص له خپل نقده بهره نشته — لکه مار د ګنج د پاسه پیچ و تاب دی

کاملان تعلقات د دنیا نه کا — لکه پاڼه د خزان پښه په رکاب دی

غفلت هیڅ مناسب نه دے په دنیا کښې — ساکنان د دغه کلا په خراب دی

چه بنا دی غواړی بې شماره بې حسابه

په رحمٰن به د عفو نو څه حساب دی

په ځوانۍ کښې بد دماغ بد ګمان یې — چه پیری در باندې راشی بیا ناتوان یې

که په دا دې زړه بنه کیږی دا خو نشته — چه به هم تر ډیره ژړی هم به ځوان یې

چه مرکز دې په لاس نه دی کښېنو توفی — بیهوده د مخو چلو پسې ارمان یې

چه بې خدایه زړه تړې په نور څه پورې — هم په خدای هسې باور کړه چه نادان یې

هسې رنګ دې د هغه جهان تماشا کړه — ګویا تل به مستقیم په دا جهان یې

هره سر دې وخپل خدای وته ټیټ نه دی — لکه ټیټ په نور د خان و د سلطان یې

یوه شپه په طاعت نه شی رنړ ولې — هره شپه په مال و ملک پسې پاسبان یې

په تبسم دې تانده ژبه وچ لرګی شه — پروچ ګویې لره بلبل غوندې ګویان یې

ونماغه ته چه نمر خیژي هاله پاڅي — په تلبه پسې په نیمه شپه روان دے
او داسه لره کوزه اخستې نه شي — چه په لوا و په لور ورځې پهلوان دے
پښې سترګې لکه ستوري په ګامونو ګرځي — که پریوزي و کوهي و ته روان دے
پښماني تر پښیماني لا پخوا سوي — نه هغه چه بیا په تیر ساعت پښیمان دے
د هلک په څیر به لاس اچوي اوربته — نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان دے

چه د بل ته نصیحت کا ځان ئے هیر دي
سوړ څوک نه دي هغه ته عبدالرحمن ئے

کمینې پیوستا در کار دے — څه کمال ځنې اظهار دے
چه اختیار ئې کمینې کړه — په دانه کښې پټ خروار دے
چرګ په دوه پیسې حلال شي — باز په سل روپئ مردار دے
چه آسمان شه سرګردان شه — چه زمین شه برقرار دے
نبات ګوره سرکښي کړه — انګور ګوره نګونسار دے
ذره خورد د آفتاب شوه — ابر خورب دي غبار دے
کوه بلند شه سیه سنګ شه — لعل وور شه بزرګوار دے
لوی آسمان توره تبې شه — هلک نور سره انوار دے

وور سره ګوره رحمن
چه لوئے نیل وي باربردار دے

که مطلب د مدعي د سري خدائے دے — هر هر مره د ژوندي رهنمائي دے
مسافر که په رحلت کښې و بله عنبز کا — هرا وازئ خواب آلود لره درائي دے
که سري د حقیقت و ته نظر کړي — ژوندي نات واره د مړو په ځائي دے
داخو بخت دے څرګنده سپین څوک تور کړه — ګنډه عین لکه زاغ هسے همائي دے
لکه فرق چه د همائي د زاغ نشته — هم د غندیل د شاد او د ګدائي دے
ته نظر د کاریګرو په کار مه کړه — کار همه واره موقوف په کارفرمائي دے
سالکان چه د جهان تماشه کوندی — له جهان ئے مطلب جهان آرائي دے
که څوک خپل دست و پائي رباسي له میان — خدائے بیخپله بي دستودست پائي دے

په هغه جهان نیکي و بدي نشته     هر مطلب طالبانو ته په دا سرای دی

زه رحمن یوازې نه یم په دا کار کښې
همیشه د یار په یار پسې واي واي دی

که مې مهر و محبت که یې عناد دی     ما د یار په یارۍ کړې اعتماد دی
زه د یار که په تن دوه په معنیٰ یو یو     هزار رخنې واړه ښهر یو بغداد دی
هیڅ بېلتون زما د یار و سره نشته     کار همه واړه موقوف په خپل میعاد دی
هیڅ موقوف د معشوقۍ په حسن نه دی     د عاشق خاطر په خپلې مینې بنا دی
زه خپل آه آتشین له خدایه غواړم     د آشنا خاطر که موم دی که فولاد دی
چې پرېشان د یار د زلفو په څېر نه وي     جمعیت د هغو زړو نو لوی فساد دی
چې د آه و د فریاد طاقت یې نه دی     هر سکوت د بې طاقتو آب فریاد دی
سل په دا رنګه نمونه د عشق نور دی     لکه نوم چې د مجنون او د فرهاد دی
چې مې زړه شي هله کښېني هله پاڅي     عشق د عقل و د هنر کره دا ماد دی
بادشاهان په عاشقۍ کښې ملنګان شي     ما د تا غوندې وګړي د چا پیاد دی
که د بنیاد خرابۍ سره ګېنج دی     فوقیت د شاګردانو په استاد دی
چې په یار پسې تر یار تر جهان تېر شي     په رحمن زمونږ هسې اعتقاد دی

چې دا نور شاعران کاندي هغه نه کا
رحمن کړې نوې نوې اجتهاد دی

په خاطر باندې مې ستا د غم غبار دی     همیشه مې په زړه پروت انبار انبار دی
رهبري که ګمراهانو ته کړي خضر     عاشقانو له هجر ستا رهبار دی
ګوندې چرې څوک د خدای په در قبول کړي     ستا الاس مې فریاد په هر دیار دی
د شهید و په رخسارو ته نظر کړه     هسې رنګ له دواړو سترګو مې خونبار دی
چې د غم په بار یې زړه زما دی کښېنولی     هم هغه مې زړه وکښلی په بار بار دی
چې هر دم مې د غمزو په توره وو ژني     لا مې زړه د هغه سترګو منت بار دی
د آسمان ډې د هغه په مدعي دي     چې په ما باندې یې کړې ستا اخبار دی
که یار سل ځل جفا ورسره کاندي     د رحمن دا هسې کله اعتبار دی

چه د سنګ د تر آهن یې زړه سخت دی    زړه هغه لره ورکړي محکم بخت دے
خدائے کله به هغه غل راته ایل کړی    چه لوټلی یې زما د خاطر رخت دے
هره غم به نور په هیڅ باندے نه وی    لکه غم چه د خپل یار په ما یک لخت دے
مګر بیل په تیره تیغ شی یار له یاره    ګنی نه بناخ له خپل بناخ سره درخت دے
دیوانګ او د پیری حاجت یې نشته    دیار الوښتن د زړه په تخت دے

چه له ویره د هغه وخت پیښانده نه شی
په رحمن باندے بیاره هغه وخت دے

زړه دې ورکړه خو دا ئې    هر چه شوه تکیه په خدایې
په سودا د عاشقۍ کښې    یا به شاه شم یا ګدایې
یا به کښینم و دوږخ ته    یا په سوری د همایې
چه خدای کا هغه به وشی    نه بل خدائے لرم نه ځایې
بے دلبره به ورنکړم    بل و هیچا د زړه رایې
پائے بوسی به یې پرے نږدم    خوږم رسی دست و پایې
یا خندا ده په دنیا کښې    یا ژړا ده په وائی وایې
تر دا دوه چارو په هرڅه    نور څه نشته په دا سرایې
عاشق بویه چه صادق وی    نه خود کام د خود دا رایې
خدائے دې نه کا څوک بعشق کښې    جو فروش ګندم نمایې

زه رحمن په کار پوهیږم
که مې مل شی کار فرمایې

هسے رنګ نعمت را کړے خدائے و ما ده    چه څیز هیڅ بها نشته بې بها دے
یو خود اچه ئې شکل د آدم کړم    دویم دا چه محمد مې رهنمایې دے
لاس د پښې و خوله غوږ سترګے ژبه    یو صورت مې په څو اسم مسمی دے
آسمان سپوږمۍ زمکه و روښان ستوري    درست جهان مې درست نظر ته تماشا دے
شپه و ورځ د ماه مهر له پرتو    څو د زمکې راته درست نقره طلا دے
په شپه مښک په ورځ کافور را باندے وری    درست صورت مې پکښې غرق سر تر پایې دے

چه هر دم زندګاني بخښي وماته — هر نسیم د یار له لوري مسیحا دے

د چمن و سرو ګلو نو ته چه ګورم — هر هر ګل راته له ورایه په خندا دے

د ګلګون میوو ناوې راته ناسته — زنګاري تمیص آغوستي د مینا دے

خپلې وینې په ورغوې کښ نیولے — هر ساغر د میو فروشو جان فدا دے

د بنه رود بغاره ناست سرود پلاس کښ — هر مطرب لکه بلبل هسې ګویا دے

چه دا هسے معرفت یې پرے پیزد کړ
په رحمن باندې منت د یک مولا دے

چاچه مزې وې په خپلو وینو وَ للي — د شبنم په څیر به تل وي سپین سپیڅلي

که صیاد ښکار د او ښکر دانې نه وي — د هوا مرغونه نه دي چا نیولي

هر یو مخ کله لائق دا بروې دي — او ښکې نه درومي په مخ د هر ناولي

هره شپه به شمع غله ژړا کړه — که یې نه وي په ژړا کښ غم موندلي

مار رحمن په ژړا نه کړه له خوبانو
که یې نه وي په قسمت دا هسې ښکلي

نمر سپوږمۍ ستا له حسنه شرمیږي — تر دوئي واړه زرغونه وزیږونکه ریږي

دا سپوږمۍ چه یې نه سرشته نه پښې شته — په کوم حسن بد له تا سره سمیږي

زړه مې یوړه ستا د مخ په رڼا زلفو — باري غل په سپین صباح کله پټیږي

ستا د زلفو د ایزیو له وحشته — همګي لړم ماران دي چه وریږي

مخ د اور خط د سبزه ده زه حیران یم — چه سبزه په اور کښ څنګه زرغونیږي

اور اوبه سره چا ګډ لیدلي نه دي — دا قدرت دی ستا په لبو کښ نمائیږي

لکه لوند زړوکي تاز که نوې ووزي — ستا له غمه مې زړه رنګ ګوګل وچیږي

سپوږمۍ هم دا هسے تاز خوري ستا له مخه — چه په هره میاشت کښ دوه دوه ځایه کیږي

ستا قامت که څوک شمشاد بولي غلط دي — د نرګسو په نرخ سپین زر نه یا نتیږي

خم ابروې په پناه د زلفو دتم شو — د لړم لښته که مار لره تاویږي

ورندانو ته دې درویلي نه شم — کانړي کله پرېښنا په دوه ځکیږي

با یک خط یې زلفو لاندې کړ رحمانه — مور چګان د شپې له مخه پائیالیږي

زلف دِ د پیرے درازئ نہ پائ ترسر دی    یا د بنفشو لښتے خورے په صنوبر دی
لب دِ د آب حیات دی یا شکرے د نبات دی    یا خوزۀ غلط شوم ترهغه وار و بهتر دی
قد ته دِ څوک نۀ شی رسیدے له بلندئ    ولے چه معراج رته خاته د پیغمبر دی
ماچه ستا بنایُست اؤ زرسپوږمئ سره په تول کړ    تللی په میزان کښ تر آسمانه سپوږمئ نمر دی
څاڅکی له آسمان په هرچا روزی یکسان    پرخه په وانه شی په صدفو کښ گوهر دی
بخت دے چه یئے څوک متمکن کړه په تخت باندِ    څوک ئے غم په خار سره پاره پاره جگر دی
باد چه دِ په زلفو باندِ صدف پریشانی کړ    څکه ئې گردونه د جهان د اره په سر دی
هله به سرے شے چه دِ نوم عبدالرحمن شی    اوس سرے به څه ئے که لوښی زیر و زور دی
سپینے اوښکے زیر رخسار د ځینے له دولتہ
اے رحمانه داد عاشقانو سیم و زر دی

چه دارو د درد و غم دی هغه مئ    ساقی ماره دِ وه جامه پیاپی
مئ د خپلو لبو رانه د انگور و    چه اوله ئے پوشیدن دی پیے قی
په هر تیغ کښ چه آب نه دی د شرابو    څوک د غم په غلیم نۀ موی بری
زۀ به اوسم په دا غم کښ مستا بکی    جام د میو چه غم خوارد کل جهان شه
راشه یو څله مِ هسے مست خراب کړه    چه خبر نه شم له حاله د هیڅ شی
بیخودی هسے پناه ده زور آور ه    چه له هره غم خلاص کوندی سړئ
زۀ هغه تحصیل تمام کړم په عشق کښ    چه ئے روغ وکړی بولی لیونی
رحمن مطلع له رقیب سره په دا کړه
آشنا به دی البته خر رونکی سپی

بد لوی په دنیا دین و ایمان وے    نه پرهیزی په خپل سود و په زیان وے
همیشه په غناے د شکر شکایت کړے    منکر بزی په عطاد سبحان وے
بخښلے خدائے د هرے چارے توان دے    په دیر توان کښ خپر بولی ناتوان وے
مدام اوښکے توئوی د رزق له غم    در گوهر په بها پلوری ارزان وے
چه په هر بیگاه سامان د هر صباح کړے    کور کور شوے د محشر په سامان وے
هیڅ گیاد له ځائے نه پاڅی نم موی    تۀ د رزق په طلب ولے حیران وے

چه پخوا تر قضا خپله رضا غواړي
بېهوده په لوټو ولې آسمان وهې

په ژوندو مړو چه د مرګ له غمه خلاص شي
آسمان کار دې کړه په ځان باندې ګران وهې

غیرې مینې دې په زړه باندې انبار کړې
په کعبه کښې تنباسې بتان وهې

زړه دې نفس په پیروی ورتښته لاړ شه
د خبیث په لاس دې ورکړه قرآن وهې

چه یوسف د حبشي په بها مرمې
د مصلوب په بهانه بندي ځان وهې

بد له بدو پښېمانې کاندې رحمانه
ته په خپلو بدو نه شوې پښېمان شولې

په نورخه پسې بې خدائ ژاړې ولې
د چارپائې په څېر ناره ژاړې ولې

چه روتئ مېده کوې په ښخوند خوجوړې
تر ځبرې کوې لواړې ولې

ته دا خپل کلام مېده په دا خپل ښخوند کړه
تا دا ارلو ته تېرې کوې دارې ولې

هغه کار چه دې په نرم وېلې کېږي
بېهوده په بیرته ولې لاړې ولې

نېک له نیکو بد له بدو مناسب دي
نېک له بد سره له بده نغاړې ولې

یو قدم د خدائ په لور اېښودې نه شي
تمامي عمر په پرته لاړې ولې

تل دې طرق د تعلق په غاړه کښېوست
وکښي نه شي د غه طرق له غاړې ولې

چه په ورځ د شیخئ لافې کړې رحمانه
په شپه مې له مې فروشه غواړې ولې

کوډ ګلو کړه چه ستا به دې ګلزار شي
اغزي مه کړه په پښو کښې به دې خار شي

ته چه بل په غشو ولې هسې پوه شه
چه هم دا غشي به ستا په لور ګذار شي

کوهی مه کنه د بل سړي په لار کښې
چېرې ستا به د کوهي په غاړه د لار شي

ته چه هر چا ته په خوارو سترګو ګورې
لاړ و بنې به ستا صورت ترخاورو خوار شي

آدم زاد په معنا واړه یو صورت دی
هر چه بل آزاروي هغه آزار شي

که ته نه کوې نظر د چا و عیب ته
هر سړي به ستا د عیبو پرده دار شي

دهقان کړې په لوړه زمکه باندې نه کړه
سرکوزي کوډ چه بڼ دې مرغزار شي

د مات لو نبي آواز کله ثابت خېژي
هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شي

ته چه صبح مه روښانه لا ر صمیم کړه
ناګهانه به دا صبح شب تار شي

لږ لږ به ګنړه که هر څو ګناه لږ دي — چه لږ لږ دبله جمع کړي بسیار شي
که بل بد کاندي ته بد ورسره د کړه — هر یو غل چه میوه لري سنګسار شي
تل د بد ورته آزار د بد د رسي — هر چینجي د نرم چوب ته ورځار شي
هغه زړه به له طوفان په امان وي — چه کښتۍ غونډې له خلقو بار بردار شي
خدائ دې بد له لاس نه کا ار که دي هم
د رحمٰن دې له کل بدو استغفار شي
هر و کړي چه منصور غنډ په دار شي — دارې پس له مرګه غل میوه دار شي
د روغ صورت که د روغ عالم لره کمال دی — لیونی لره کمال دی چه سنګسار شي
هو ګیاه چه د کمال وته رسیږي — سرئ زمکې وته کوز دې نګو نسار شي
نړی باد به ئې په خپل منزل داخل کا — که څوک پا نړه د خزان غنډ طیار شي
غفلت هیڅ مناسب نه دې د سپین ږیرو — صبحدم که حیوانات دي هم بیدار شي
چه یو مرته اېږی ناز په آئینه کړه — هم په دا خبره نخرد خاکسار شي
کیمیا نو سود موندلی دې په زیان کښ — ملک بناخ د دُنی وتراغي بار دار شي
خزانه په سخاوت سره زیاتیږي — د کوهي ادبه چه د کاږي بسیار شي
مړ و دل د وږدې کیږي مشکل نه دی — مړ دل د وږو ستر کو مشکل کار شي
کم خوراک که تر دې شي فرښتو نه — هر سړی چه بسیار خور شي بیار خوار شي
صاف دلانو لره لږ نصیحت لږ دی — د کوهړ پیوستون په نری تار شي
غلبه د عشق بهانه د حسن غواړي — توره شپه په عاشق زلفی د خپل یار شي
د توفیق له مخه هر مشکل آسان دی — وستي وته دا ورشي ګلزار شي
نارد عشق پرورش مومي له عشقه — هسې نه چه د خوبانو په سنګار شي
بې محنت چا راحت موندلی نه دی — د وصال خوښي د هجر په مقدار شي
عاشقانو لره وارد سعادت دې — که سر و مال د یار تر نامي ځار شي
پاره پاره هر څوک وائي په جهان کښ — زړه به پس له مرګه دایم چه یار یار شي
لکه دار کاندي ورغوي له ګر کا نو — هسې زنګ له جدائي نه زما دار شي
د رحمان دا پوچ ګوئي څه پکار نه ده — عاشقي په ګفتار نه شي په کردار شي

چه مجنون غوندې يو مرتې استخوان شي — په قوت د عاشقۍ به پهلوان شي
عاشقانو په شکست کښې بره بيا مومند — ملته توان د هغه زړې چه ناتوان شي
زيړې رنګ د عاشق هسې مرتبه ده — چه آفتاب غوندې خرګند په درست جهان شي
له چشمانو يې باران د رحمت وورې — زرغونه يې په څهره باندې زعفران شي
له رخسار د حال د زړونو معلوميږي — له بهانه نيکو بد و کال عيان شي
له نکتې نه تمام علم حاصليږي — درست خروار له يوه مشت نمايان شي
پکار نه دي مخالف هزار تقريره — موافق له حال نيم کلام داستان شي
لکه مرله کاروبار ده ري و ستلي — د هغو خاورې په برچه غافلان شي
که د دير عمر پکار دي غفلت مه کړه — په اوده باندې سل کاله يو زمان شي
د غفلت بنياد دا دی بنو په موج خيژي — يو څڅوکي خواب آلود لره طوفان شي
پرېوند په خپله عصا پريوزي و کوهي ته — خپل دليل د کم دليل د ګمان تاوان شي
سرکښي د عاجزانو پکار نه ده — هر ميږي چه وزر وکاندې پښيمان شي
موم دلان به ئې له نخره لمن ژغوري — سنګ دلان که عين لعل بد خشان شي
چه کيميا د قناعت يې په لاس کښيوزي — د شرې په خرقه کښې بادشاهان شي
بل پوشاک يې پکار نه وي بې همنده — هغه زړه چه آئينه غوندې روښان شي
عاشقي ده ترجمله د بلا زياته — و مجنون ته ديو د وا ره حيران شي

کاتبانو ورکا د رد خپلو غوږ د
که ئې تير تر غوږ و شعر د رحمان شي

که د سرو زرو سره وي خوچه مر شي — نه ئې نوم پخوله څوک اخلي نه نوم مر شي
که هيڅ ايږه کړه نه وي په جهان کښې — راحل ته لکه خرپه خته پر شي
راشه راشه دا دير ناز و کبر مه کړه — ياره څو به دې دا ناز په جهان دړ شي
دا رخسار چه دې روښان تر آئينې دې — عاقبت به د لحد په خاورو خر شي
مراد خو دا په دلبري ده غزا و شوه — که د سرو په شير څرګ په قامت لوړ شي
نيک نامي له نيک خويۍ نه پيدا کيږي — د غه چاره نه په سوک نه په لوړ شي
عاشقان چه پښيمانيږي هغه نه کا — هغه څوک د بې هنر دي چه خپه شي

داخوزه له شفقت تا ته وایم — ګنړه ځان له سرنوشت په چا ژغوړ شي

د هوا په نخوته مه شه که داناې — دا هوا وشیتلي قطې زر په زور شي

وران به نه کا یو حرف د ځنپلي بخرې — که په اوښکو دچا درست جهان چقر شي

په تدبیر به د تقدیر ښکلي نور نه کړي — د قسمت علاج په عقل که کړ شي

په رحمن باندې یاره صبر ګران دی

نکه زهر چه دیده دانسته نغړ شي!

صبعد مرچه هغه یار را باندې را شي — عجب نمرده نمرد پاس هویدا شي

ښکلي مخ له حاجت د سنګار نشته — بې ترتیبه چه نمرو ښیزې رښا شي

چه یې ګوډ ینړ له وراید پورې نبلم — نکه پینږ چه وبله کاه وکهربا شي

ماله وبیړه ناچارۍ ویار ته شا کړه — ناردا د ضرورت په ځانګې روا شي

زه په وصل کښ خوارۍ د هجران ژارم — د هر کار فکر تر کار د لا پخوا شي

لا پخوا ترجدایۍ نه ژړا بویه — ګنړه هلته هر یو ژاري چه جدا شي

د وصال نه دې چا په سر د مال موندلې — مګر غا په یه دا کار د چا ادا شي

زه به سر و مال د یار تر نامې ځار کړم — دا په عشق کښ سهل کار دی که په دا شي

د رحمن په اوښکو مه رنګ پوهیږم

چه آخر به په تمام جهان رسوا شي

که سل ځله هم کنار وهم بغل شي — د دنیا په مینه دا ره سره بیل شي

دا چه اوس په یوه کور کښ سره ناست دي — عاقبت به یې جدا جدا منزل شي

دا ګلونه چه یې ځانګې ده په دستار کښ — همه وار به تر پښو لاندې غوبل شي

دا پې مخې چه ګې مخ د نمر په څېر دي — تورو پنته به ګې په مخ باندې خشکل شي

دا شیریني شیریني شربت چه د وصال دي — د هجران په وخت به زهر هلاهل شي

ما دیار په بیلتانه کښ دې لیدلي — که دا ناد زماني وي مبدل شي

پښه له وېرې د وصال نمز که نه بز دي — چه خبر د جدایۍ په دل دل شي

وده هسې رنځ علاج به څوک په شه کا — چه نه فرصم د چارې نه اتهکل شي

که د غزو نو په سرګرزې سرې تیبت دي — هر په زړه ګې د خوبانو په یرغل شي

د رحمٰن خاطر غمونو هسې رنګ کړه
مګر جام د میناب دی چه صیقل شي

چه شهید د تورو سترګو په خنجر شي
خوشنودی یې د سرو شونډو په کوثر شي

چه رایاد یې سپین رخسار د رازمږګان کړم
هغه دم مې زړه سپند سینه مجمر شي

عندلیب خاطر مې الوزي په ګلو
که د ترکو سنبل زلفې یې شهپر شي

که یار سل ځله جفا راسره کاندي
زما کله په جفا دیار باور شي

د ناصح په نصیحت به منع نه شم
که هزار ځله مې ورور د برادر شي

د رقیب او زما صلح سره نشته
که هر چېرې لاس و دست و بله بر شي

صبوري او قراري له ما خطا دي
تر هغه ساعت پورې چه محشر شي

تیر ساعت به د هیچا په لاس کښې نه ورځي
مګر تللي آشنا بیا په آشنا ور شي

خوبرویان به د سپوږمۍ توکره را واخلي
که رحمٰن کچکول په لاس کښې قلندر شي

چه غبار د استاد لاره په خوا ور شي
که په دوارو سترګو ړوند وي مبصر شي

تازه نوې سر پیدا کړي لکه شمع
چه یې غوڅ د استا په مینه د زړه سر شي

چه کیمیا د قناعت په لاس کښې ورځي
که ګدا وي د قارون په څېر توانګر شي

ستا د در ګدایان واړه بادشاهان دي
خو چه ستا له دره ورځي دره په در شي

تل یې مخ وي له عالم جارو ستلي
د هغو چه ستا په مخ باندې نظر شي

که د درست جهان له حاله خبردار وي
چه تا ورینې له دارد ناخبر شي

آئینه که د جمال کړې ور څرګنده
دا ګدا رحمٰن به شاه سکندر شي

چه سړي له بل بد وایي بد ګویي شي
لا تر یله خوار روان ددهٔ بد بوي شي

مرده شوي چه هوس کا د بل مرګ ته
بل هم پس ددهٔ له مرګه مرده شوي شي

دوست دښمن د سړي واړه خپل عمل دي
هم په دا مقدار یې اجر موي پموي شي

هر څو ونه کږه په یوه لور چه وي
عاقبت به پریوا ته په هغه سري شي

په نوې کښې نور غږه نشته بې زوال
هلکان د هلکتوب په سبب پوي شي

داد بو اصل له خاورو پیدا کیږي
خاکساري د خاکسارانو په آبرو شي

هره زیان له خوک خرڅ نه د رسیږي
لکه څوک په آدمیانو کښ بدخوی شي

سړي هوش چه د سړي له تنه پاڅي
د سړي په جامه کښ خرشوی شي

و هغو ته چه خدای بخښله وجود
څه حاجت يې د رحمن په ګفتګو شي

زړه مي ستا په فکر ذکر ګلستان دی
تن مي ستا له غمه پانړه د خزان دی

ستا د هجر په غم هسې بهره مند یم
چه په سترګو کښ مي جوړ د ودروان دی

ستا کتو مي په عجیب زخم په زړه وکړه
چه هم وینې تره بهیږي هم خندان دی

هسې رنګ مي د خپل زړه له وینو واخست
چه ځان درست راته ښکاره د خپل جانان دی

که دي ستا د زلفو مارکاندي خونونه
ما موندلی ځکه عمر جاودان دی

زنکدان که هر څو تنګ د تریخ وایه شي
ستا د لبو په مدد آب حیوان دی

آشنایي تر جدایي کمزوری نه ده
معطر په بوی د مصر درست کنعان دی

لکه نمر په څلورم آسمان لیده شي
محبت په سل حجابه کښ عیان دی

نور د شمع په فانوس کله پټیږي
عشق د عقل په پرده کښ نمایان دی

که دي ستا په مخ کښې بوی د حجاب نشته
زړه له ویرې څخه وایم چه پنهان دی

طاؤس رنګ زلف د چا هسې ګړه دي
چه هر موی په څو رنګ په خوشان دی

بې پرده په حسن نه دي چا لیدلی
که څوک وايي چه لیدلی شي تش ګمان دی

ښادي غم څنګه آسانه موندل نه شي
سور په خپلو وینو لعل بدخشان دی

که وصال په هر زمان وي هسې دریغ
لکه غم چه د هجران په هر زمان دی

بې دا ستا له ملاقات چه مشکل شه
نور مشکل وار په ما باندې اسان دی

هم په دا راته آسان شو نور غمونه
چه ستا غم راله حد په هورته ګران دی

یو نفس به دي له ذکر بیرته نه شم
څو مي نفس باقي په دا جهان دی

تا له د صبر هیڅ ویسا پر نه کړه
ستا له غم مي منزل د زړه ویران دی

لکه سرو سامان ستا د زلفو نشته
هسې زړه زما بې سرو بې سامان دی

لکه تا چه تور ګیسو په مخ پریشان کړه
زما هسې خراب زړه پېچې پریشان دی

خوار خاطر به د رحمن سلامت شوی
چه ګذري ستا په چاه زنخدان دے

ستا له غمه مې په سر کښې هسې شور دے
ګویا میشت مې په هر ښهر د لاهور دے

په افسون او په جادو د تورو سترګو
خراب زړه مې له جمله عالمه تور دے

که مې زړه له غم وچوي راته وایې
غم د هجر دغه مه ګڼه لا نور دے

د هجران په بیمارۍ کښې را معلوم شه
چه اخته مې آزار د پلار و مور دے

د دنیا په مثال کور شوه د غمونو
چه په هسې کور نازیږي هغه کور دے

د جهان نند چا خپل دے نه به خپل شي
چا په خپله رضا په پرینو چا په زور دے

چه د مرګ په پوره دریو کښې ځوک ومري
دې د را په پور ور پریوزي ورور دے

که رحمن په عاشقۍ ملامت کیږم
ما په سترګو قبول کړے دا پیغور دے

که د خلقو و نظر ته آدمي دے
خوار عاشق د معشوقې د کوڅې سپے دے

هرچه ځاندیار په سپیو کښې داخل کا
تر هغه به ورته وایم چه سړے دے

ما و خند اخه دیار له غم بې غم نه کا
په دا ملک د عاشقۍ کښې لوئے ورانے دے

زه د یار په غم کښې زیړه ځېړه خوښ یم
دا زما خزان خزان نه دے پسرلے دے

زه ژړندون د یار و وصل وته وایم
ګڼه هر یو دوزخي په ژړند ژړندې دے

ته چه ما منع کړے د یار له دره
کوم یو درد یار له دره بېلے دے

زه د یار مینے په یار باندې شیدا کړم
که ځوک ما ګڼړي زه نه یم واره ده دے

چه رښتي مجنون نے ښهر لره راوست
د لیلې د زلفو هسے غرونده دے

زر داران که او به څښي په جام د زرو
زما خوښ د اخپل د خاورو ګنډولے دے

اورنګزیب که هغلي په تخت نازیږي
خپله خونه هر ګدائي له د هیلے دے

چه له خپله کوره ووزي مسافر شي
ځوک ئے پېژني سا هودي که مرئي دے

چه ئے خاوره شي د خاورو سره ګډ دے
ترو چا زده چه د کوم ښکه ښمے دے

توره شپه په آشنایانو د نورا ورځ ده
رڼا ورځ په اشنایانو توره شپه دے

نه د سترګي پوزه غوږ د کم شناختو
په معنی کښې یو دیوال سوړے سوړے دے

عاشقان د دنیا له غمه خلاص کړه　　عاشقي د سلیمان بادشاهي غمی دے

هر چه حب د عاشقۍ لري په زړه کښ　　که په قطع صد ساله وي هم زلمی دے

دا هلال دے چه لیده شي په شفق کښ　　که په لاس د ګلاندام سپین وښي مے

نا آشنا به بهره څرنګ ځني مومي　　چه مدام يې په آشنا پسې غورزے دے

څو بوي م تر بانۍ لره پوهیږم　　دا چه کړے دې په ما باندې زړه سوے دے

چه په نوم باندې باله شي لیده نه شي　　معلومیږي چه نرخور یا بناپیرے دے

چه د خط په دور يې خلق پکښې پریوځي　　زندان يي تر سبزي لاندې کوهي دے

زه رحمن د یاره خوښ یم که جفا کړه
که جفا نه کا وفا کا څو تیرے دے

که له ډیره غمه دم د چا ختے　　زه به مړ د مه په عشق کښ لړغونے

زړه م هسے شا په تورو زلفو بېلود　　لکه ورک په توره شپه کا څوک کالے

په یوه ساعت م ردهم قبول نه کا　　نه پوهیږم چه څه خپل یم که پردے

په یو لاس کښ م مرهم په بل خنجر دے　　نه په مړیو کښ حساب یم نه ژوندے

که په مرګ د عاشقانو تنے رضا ده　　خدائے دې ما کا تر همه واړه وړنبے

خون بها م د ستي په مثل نشته　　ما ګنڅله قبول کړه دا خپل سوے

څوک دې غم زما په ډیرو او بنګر نه خوري　　کم به نه کا په خوردن سره ندے

د هجران په توره شپه کښ نے ویریږم　　چه ځه نه وینم د وصل سپین سپوږمے

دیار غم لکه زمری را باندے راغي　　خدائے دې ویني نه کا په چا باندے زمرے

چه پرے غم غلطوم د شپے پاڅم　　کله مئ په شونډو کېږدم کله نے

کاه کتاب کله رباب په لاس راواخلم　　یاري دردم په هیڅ رنګ نه کا کمے

همسایه م واړه دواته له خرابه　　که په سل کو تهور نه کړم زګیروے

که عاشق تر معشوق پورے یو چپے دے　　خدائے دې هجر په توره مه ړنه چپے

زه رحمن دیار په غم کښ مے ډوب یم
چه هیڅ نه وینم په سترګو مے ګرد دے

په دنیا کښ که څه کار دی خود دین دے　　د دین کار په کنندو آفرین دے

چه تقوی او دیانت يې شي په بخره — د هغو د سعادت ستوري ترين دے
قناعت مې هسې خوند په خوله کښې کېښود — چه وچ ټوک مې په دهن کښې انګبين دے
بې هما تيا نو بې او ښا نو بادشاهي کا — د زاړه پوزي ټوکرکي يې قالين دے
چه په خواست د حاجت پورته کا لاس ونه — د آسمان د ملائيکو پرې آمين دے
چه تښتي له کهتري کا په دنيا کښې — د هغو په بهتري باندې يقين دے
تل د لوړې او بر دردمي و ژورته — حق تعالی کمال ور کړې وکمين دے
خاکساري د خاکسارانو مرتبه ده — که زر ړوکي يې خيرن زړه يې سپين دے
د سرکښو سر که ورشي تر آسمانه — په دوه ورځې پس ځاې يې زير و زمين دے
که بنيود يې وي په سرکښ او لوئي کا — د رحمت ليا تت نه لري لعين دے
که صورت يې د سړي سړې باله شي — په معنی کښې سړي نه دي شياطين دے

که رحمان څخه متاع دد نيا نشته
شکر داچه نه خود رائې ونه خود بين دے

زه بلبل ستاد وصال يم بوستان څه دے — ستا د وصل په نسبت ګلستان څه دے
چه آشنا شي ستاله دره له ديوار ده — انتظاري په روضه د رمضان څه دے
چه روزي يې شهادت شي ستاله تيغه — احتياج يې په چشمه د حيوان څه دے
چه مسکن يې د زړه ستاد زلفو خم شي — وهغو ته د عطار دوکان څه دے
بل هوس که له تا غواړي له تا څه شو — هر رنګ هر رنګ وېل کاندې نادان څه دے
هر چه لاند خپل وجود تر خپل قدم کا — عرش لاندې تر قدم شي آسمان څه دے
زه چه ستاله غم ژاړم آه و فرياد کړم — برق و رعد چکاره دے آسمان څه دے
ځان جهان مې هسې ستا په مينه هېر دے — نه پوهېږم چه ځان څه دے جهان څه دے
ته چه نه ګورې و ماته لږ مې پوهه کړه — په دا کار کښې د ضرر د نقصان څه دے
زه بې صبره يم که مهر دا ستا نشته — له د دوار دې په زړه کښې ګمان څه دے
که ستا سترګې دي قاتلي زه مقتول يم — وايه تور دې په خاطر کښې ارمان څه دے
چه مې وينې تر دم خپو ښتې له حاله — له عيان احتياج د بيان څه دے
هر چه وايي ستا رسئې د رحمان غاړه — د نوانا و ته حجت د نا توان څه دے

چه دښکنګ مې دلبر په لاس کښ جام دے
ن اورنګزیب د زمانے زما غلام دے

مدام که وی دنیا دَدُنیا دارو ته
بے له عشق چه دولت ئے مستدام دے

د هارون څرخ پایئ نیلی دی دَ سپهر
څو به دوکا چه ئے دد په سره بام دے

د دنیا چارے په مثل د مے د سوری
دا آفتاب په مخ دَ سوری څه مقام دے

که بے صبح بنائسته ده خنده رویه
بیائي هسے په هر صبح پسې شام دے

نه په مهر کښ آرام شته نه په ماه کښ
په دنیا راغلے هر یو بے آرام دے

بېغمي په دنیا چرے ده رحمانه
یو بے غم دِ څوک را وښیې کدام دے

مادِ ستالین ته اچولے دا خپل ځان دے
ستا دے زما نه دے که دانا دی که نادان دے

خپله سرکښې لوئي م واړه فراموش شوه
هسے م زړه ستا دی لوئے قامت ته حیران دے

بے له تا که سیر د ګلستان کړم که د ګلو
نه پوهیږم هیڅ چه ګلستان دے که زندان دے

چا پیشا ندم زه چه عاشق نه دوم په جهان کښ
اوس م ستا له زړی نوم رسوا په درست جهان دے

دیر هزولی تیر څود مجنون بے نام و نقش
عشق دے چه عاشق لره هم نام دی هم نشان دے

لوئے ترکوم چینجی دی پروانه چه افسانه شه
داره په سبب د عاشقئ نمایان دے

داره د خپل ځان په نظر ګوره که دانائ
اے عبدالرحمان درست جهان عبدالرحمان دے

یو یو داغ په تحت راښنی د هر چا دے
که ولایت د بادشاه دی که ګدا دے

سیرابی په سرچشمه د دنیا نشته
تشنه لب ئې ګوټي ګوټي په غوغا دے

لره راحت په ډیر زحمت سره موندئ شي
د دے د هر څه حرام دی که دریا دے

د دنیا بنادئ بعینه موندے نه شي
له خیرات د څوم له ګوره په بلا دے

فراغت پر بانډِ ولے حرام نه وي
چه داخل په سراچه د دے دنیا دے

د مجنون د حال پوښتنه به څوک څه کا
جهان واړه کوراکور مجنون لیلی دے

عشق یو هسے رنګ افسون په عالم پو کړه
چه عاشق په تور و ستر ګو نابینا دے

د هر چا ئې بجړه ورکړے ګوټي ګوټي
خپل قسمت د هر سړي جدا جدا دے

ورکړو راپیر ده تول دبل په لاس دی
هلته دخل نه د ستا دے نه زما دے

په هر شه چه صاحب د زړه رضا شي  په بنده که ناروا دے هم روا دے
خواه ناخواه که ئې رضا وي او که نه وي  د قسمت رسد رضا و نا رضا دے
ځان جهان سپارلي بويه وهغه ته  چه ئې حکم جاري شوے په هر ځاے دے
دهرچا په لاس حکم حاکم ورکړي  جهان دا ره د هغو په مد عا دے

چه مولي ورسره مل نه وي رحمانه
که لښکرے ورسره وي يک تنها دے

په ظاهر صورت چه ستا د ور گدائي دے  په معنیٰ کښ د جمله د کد خدائي دے
مجنون بيد غندي رونق د گلستان شي  چه ئې ستا له غم سر په پشت پائي دے
چه له غم دِ جرس غوندي نالان دے  د جمله د گمراهانو رهنمائي دے
چه څوک زړه دِ ستا و تور و سترگو ورکا  ستا ور ځو تور محراب د لاندي ځائي دے
چه مسکن لے د زړه ستا د زلفو خم شي  د هغو نا ستے په سوري د همائي دے
چه تا ورته وما ته نصيحت کا!  شک به مه کوه بشيک چه خودرائي دے

که زر دار دي آشنايان د زر دارانو
د رحمان د آشنايانو تکيه په خدائي دے

هغه زړه چه د ستا د عشق په اور کباب دے  که مرهم ور باندي کيږدي د پر ثواب دے
حجابونه له اغيارو مناسب دي  ديارانو په يارئي کښ چه حجاب مه
بے له تا چه نباتات دي بحساب!  په هغو کښ هم ستا حسن انتخاب دے
مکه گل چه تر آفتاب په بر مه خجل دي  د غمے ستا ترمخ پورے آفتاب دے
دا د ميو څه مستي او سرخي نه ده  تيغ د سترگے ئې په وينو کښ غرقاب دے

زه رحمن به څه جواب کوم ديارته
وړ وند يو ته د مر يو څه جواب دے

ستا له لاس په ما جور مه که داد دے  زما مراد خو دا ره ستا د زړه مراد دے
ستا په مينه کښ رساله مخ تنبتی  که آفت دے که آسيب وي که فساد دے
هر اهداد چه دا کار ده ستا په ميني  په ليمه زما قبول هغه اهداد دے
که تمام جهان پريږدي به ليمه کښ  بے تا نه را څرگنديږي نه يم يا د دے

ماچه غوږ د استا د عشق په ترانه کړ      نصیحت مې نور د زړه په غوږ یاد دے
اوس زما له ننګ و نامه سره ښه دی      چه دې نوم د عاشقو لا باندې زیاد دے
هر ګلشن چه له ګلرخ بې بهره دي      د عاشق په نظر غولی د صحرا دے

د رحمان و توان ته ګوره همره ناز کړه
څه دار سپین و روغ نه دے آدم زاد دے

که دې ستا د خاطر مینه په اغیار دی      ستا د پاره دې اغیار هم زما یار وی
هر سړے چه په یو مخ باندې مئین دی      له یوه مخ یې سل مخه پکار دی
هرچه کاندي نوکري د بادشاهانو      خاطرخوا به د دربار یا نو منت بار دی
څه به ستا له رقیبانو زه ماته کړم      دا دستور دے چه له ګل سره خار دی
غوسل خارې خبر نه شي په تهتر کښ      کله وي چه د بلبل د ګل تر لار دی
سجاده به د ساقي لاره فرش که      هر صوفي چه د سرو سترګو خریدار دی
په جذبه د عاشقۍ به لیوني شي      که په قطع افلاطون غوندې هوښیار دی

په رحمان باندې به هیڅ ملامت نه کا
هر سړے چه ستا له مخ خبردار دی

په دنیا کښ که هر څو بلا په پیوند دی      پس له مرګه به قطع درست صورت بند بند دی
زه به وخورم په دا باب هزار قسمه      که باور دې په قسم یا په سوګند دی
یا به ورانډې تر تا دروم یا به ورستو      که دې رور که دې عزیز که دې فرزند دی
زمانه به یې تر پښو لاندې پایمال کا      که په قطع تر آسمان پورې بلند دی
هم به مے پیمانه ګنړه په خاورو د      که یې ډکه خوله تمام عمر په قند دی
هرچه کاندي آزادي په دا جهان کښ      پس له مرګه به همه واره په بند دی
هرچه غاړه یې وخت ته اېښې نه دی      همیشه به یې په غاړه کښ کمند دی
دا چه زه تا ته وایم که خدائے کړه      په آیت او په حدیث کښ به څرګند دی
تر چه نه کړې باور په آیتو سنو      ترو زما دپل به څه ده لره پند دی
ناپسند به د منکر په انکار نه شي      هر کلام چه دلپذیر و دلپسند دی
خدائے ګنج د قناعت و رحمان ور کړی      چه بې ملک بې حشمت دولتمند دی

که د درستې دنیا غم مې په سر بار دی
وا په سهل دے که یار راسره یار دی

هزار وار ده به د یار تر نامه ځار کړم
که په صورت مې دا یو صورت هزار دی

هغه نه دی په شماره د عاشقانو
چه د خپل تبر دا غونډیږي په شمار دی

مشکل کار د عاشقۍ چه رب پیدا کړ
کله بل په جهان هسے مشکل کار دی

څوڅے او بنے په مخ لارے روڼې نه کا
د هغو معشوقو ته کله لار دی

ته چه ګل زما د یار په جنس غواړې
کله دا رنګه ګلونه په ګلزار دی

نه مونده شي په بازار کښ نه په ښهر
هغه رخت چه د خوبانو په بازار دی

زه د یار په څیر مخ نه وینم په سترګو
که په هر څو خوبان هزار هزار دی

د عاشق نظر په دېر دو په لږ نه دی
که دیدن د یار په لږ که په بسیار دی

شته هزار هزار خوبان ولے سوګند دی
که زما د یار په څیر د چا یار دی

مرګ د هیچا سره وار نه کا رحمانه
یار به ځان تر یار د ربے کله ے وار وی

له هغو سره به څه ښکره یار وی
چه هزار یاران لو هزار هزار دی

په آشناپے وېشتلی هم هغه وی
چه لوے آشنایي استغفار دی

صبوری او قراری د په ما زور ری
که بے تا به مې یا صبر یا قرار وی

هر ژوندون دیلا په وصل بنائسته دی
بے مین که ژوندون دی څه پکار دی

که د یار له لاسه اور په یار رسیږی
هغه اور د عاشقانو په ګلزار دی

په یاری کښ آزار نیشته خدائے د نه کا
که زره به زما زړه له تا آزار دی

د هغو ته عاشق مه وایه بویه
چه ے فکر یاد سر یا د دستار دی

ځانے اورشی چه زنارشی په غاړه
دغه اور به هم رنبتیا تا د رخسار وی

هغه جونه په لیلی غوندې رسوا شی
چه رحمان غوندې مجنون ے په دیدار وی

د هغه چه خښله مهر و محبت وی
په هستی او په نیستی کښ فراغت دی

عاشقی د ده تر هغه مقام په هورته
چه د چا مقام په زړه د په راست دی

څه دا ور په لنبو سوی څه د عشق / داره عشق دی که هجران دی که وصلت وی
چه مطلب و مدعا سری خدای شی / ناست ولاړ یې همه واړه عبادت وی
که په دوه قدمه ومری هم حاجی شی / چا چه کړے دمکې په لوری نیت وی
هغه څوک چه پیروی د اولیاؤ کا / دا یې واړه په معنی کښ ولایت وی
که د زرو په تخت کښینی غرا و شوه / وذهیم و ته کم فهمه بے غیرت وی
خاورے زر په سری واړه برابر شی / هغه دم چه له جهان په رحلت وی
د دانا او د نادان ترمیان یو حد دے / هوښیاری ترحده په هورته حماقت وی
نور عالم که د دنیا غمونه کاندی
د رحمن سره د غم د آخرت وی

عاشقان دې په اور سوی دی که نه دی / ستا د عشق په اور اولوی دی که نه دی
زړونه د هجران داړه په عشق کښ / تا د ماو ته ښولی دی که نه دی
په دنیا کښ یو سر و مال و بیل شی / د واړه ما په تا بایلودی دی که نه دی
تل د ورخو په لینده د بڼو غشی / تا په ما باندې راکښلی دی که نه دی
که مدام یې زما زړه له غم چوی / تورے زلف دې سحری دی که نه دی
راشه وګوره احوال د عاشقانو / مرد عشق په تیغ کوشلی دی که نه دی
ناصحان چه نصیحت و یارته کاندی / چرے دوی هم مین شوی دی که نه دی
ښایسته که په ښایست ملائکه وی / په رکښو د زړونو نوروی دی که نه دی
بلبلان بے نارے دی رحمانه
د بهار ګلونه شوی دی که نه دی

خدایه دې وژغوره له هرے پریشانۍ / اے زما د کور د ګلی ودانۍ
عاشقی چه ما کښله نادانی وه ! / اوس خبر شوم له دے خپلے نادانۍ
تر دوزخ تیرے اوبه بیرته نه جاروزی / څه پکار دی پوچ ځایه پښیمانۍ
ودانی په یو دم کښ شی ویرانه / مرد هغه چه کړی د زړه ودانۍ
نکد باد چه خاورے له کوه د دشت / زه په تا پسے ګوم سرګردانۍ
دا خو زه دا ستا د غم سره لوځښیږم / څوک دې دیو سره کا پهلوانۍ

چه په آب و په آتش په خاک و باد دی      څه امید ده د هغه زند کاڼی
ته چه دا رنګ اوږده اوږده وعده کړه      کشکی دا کړې وماحط دا ساڼی
زه او ته که هغه وخت دی چا به نه کړی      د مجنون او د لیلی قصه خوانی
زما ستا د ننداره ته چه حیران شو      که ژوندی وه آدم خان و درخانی

د هر چا د ته چه وایم حیرانیږی
څه به وایم د رحمن له حیرانی

هسی ډوب یم ستا د غم په دریاب تللی      چه ماهی غنډ بی تیغ یم کو تبلی
مالیدلی چه لیند دی ده راکښلی      تا د ورغو په لینده یم زه راکښلی
په خپل خان یم تر هغه پوری نظر وه      خوږ م ته په نظر نه وی کښیوتلی
او س یم ستا په مینه ځان وجهان هیر شه      د سیلاب په مخکښی لاړ م لکه خلی
عاشقی به څه د باد په مخ سبزه کا      کم لی ځان وی کوه قاف غنډی نیولی
د چه د عشق له بحره روغ سلامت وزی      زه څی نه ګڼم له مره زیږیدلی
هر چه دا دری په بلا د تورو زلفو      هغه بیا ترکوره نه دی ور غلی
چه له غرونو پریوتلی وی بیا پاڅی      پاڅید ی نه شی د زړونو پریوتلی
چه اور لمبو وهلی وی بیا روغ شی      نه رغیږی د هجران لمبو وهلی

زه رحمن یی هر دم ویم ستا په غم کښ
که خپل مرګ په خپلو سترګو نه وی چالیدلی

زه دا ستاله غم ژارم واړه وینی      دا به وینی دا په وینی واړه وینی
خو دم وینی چه په تش کاته دی مرمه      را خنجر په کانړی مکه دل سنګینی
هر زمان یم په حضور د زر ګر وژنی      لا یقین دی د زړه نه شی بی یقینی
عالم ستا په مینه ژړی نه پوهیږم      زه په څه سبب وژلی یم ستا مینی
د بر عالم په نوری رنګ کښ معلومیږی      تا چه هسی جامه واغوستی رنګینی
پیښی نه وی چه د بله خواته درومی      هسی سکنږه په غمزه د عاشق وینی
که صورت یم پری بله پوری معلومیږی      زړه یم ستاله غمه چاودی معلومیږی
هغه څوک دی چه ترتا به معلومیږی      نه تر واړه مهرویانو مهترینی

چه د زلفو د رحمٰن په زړه ورېځ کړي
ترېنه زړي اوښکے څاڅي اوښکے ورېځي

دوصال په هوا والوتی مرغه شوے — دهجران په اور کښې درست صورت اوبه شوے
نه و زر که له هوس نه مرې له غمه — سرے تخت دے ګنړه یو اثر پرے وشوے
زړه که چا ږدے هم له دی غم به چا ږده — چه دیار د بیلتانه خوارئ په زړه شوے
د رقیب د ناکړ د وته چه نظر کړم — د عاشق له آه ړوند په تورلیمه شوے
هیڅ پوره به د نیمګړے نه شي خدائے — که بیلتون د دوه یارانو وبله نه شوے
خدائے د رضا لوره اغسے تعویذ وکړه — چه نور زړه د هغه یار تر فهم بهر شوے
یو ځل یار په سترګو ولیده چه دادی — دغه پس چه شولے بیا هاله شوے
نوم ئے یو ځل زما دا خستے په ژبه — نورم نوم په دا جهان کښې پاتے نه شوے
لکه درست عمر په خوله د رقیب کار کړه — دغه هسے یو زمان ځما په خوله شوے

زه رحمٰن په دا خبره حیران یم
نه پوهیږم چه دیار له غمه څه شوے

کله تا ئے شرم نه کیده مهرئے — مخ به پټ نه وه د حورے د پرئے
چه آفتاب د تر رخسار پورے خجل شه — له دے زیری زیت په شپه کا قمرئے
ستا تر حسن پورے حسن د اړه هیڅ دی — نیست به غرلی له هستو برابرئے
بې دا ستا له تورو سترګو جادو ګرو — کوم آهو د بیابان ږدی دم ګرے
تا د عشق د تورے هسے رنګ ګذار دے — چه له مخ ئے حباب وی ککرئے
دلبری او دلجوئي لکه د ستا زده — چا زده هسے دلجوئي او دلبرئے
حسن واړه د عاشق په عشق موقوف دی — معشوقه که فرشته دی او که چورئے
وعاشق ته دیار غم واړه ښادی ده — د رضا په ملک کښې نشته دلګیرئے

داد ستور دے چه له درده زهیرکی خیږي
ګنړه څه وو د رحمٰن له شاعرئ

خدائے مه کړه نا امید هغه وکړے — چه امید ئے وی د ستا په کرم کړے
ستا له رحمه به زه ولے نومیدی کړم — چه د ځان کرم د رحیم په نوم نومړے

دا یمکړے سړے ننګ هم دَ خپل نام کړه — تهٔ خو خدائے ئے چه په هیڅ نهٔ ئے یم کړے
هیڅ بنده دِ په بزرګی کښ لیده نهٔ شی — څو تا خط دا آزادئ نه دے درکړے
دا همه واړه شومیت دی دشو مانو — ګنړه ته دچا په زیرمے نه یئے ستړے
بے تایئے په زړهٔ بله سود ګرزی — تر مقصود دبه ونهٔ رسی وګړے

هرچه ستا په لار قدم دراستئ کیږدی
که ئے زیان وی زهٔ رحمٰن پو رو ړے

دا آشنا له لاس ناست یم په زړهٔ ستړے — په نفرت یم بکار نهٔ دے درست وګړے
چه په ژوندئے طمع پریکړے شی له ژونده — نور په خوب نید و یریږی سر پریکړے
که ژوندون دعاشقانو په وصال وی — زهٔ مجبوریم په دغه روایت مړے
خوژ ژوندون یم جدائیٔ هسے ترخ کړه — چه له غم له تلخئ دم نهٔ شم رانغړے
دا صورت په مثال خس محبت او رشه — چه په یو زهٔ ئی پیژوان شه دَ عشق پړے
لا علاج به ګڼه او بزے بار برداری کړه — تر دوا او ربه محکښے څه کاندی خسنړے

له اخرالهٔ ئے ډرو ډرو پو ستئ یارانو
بیلتانهٔ د رحمان وار دے خطا کړے

خو زما پد ورسیږ ما نو لو شیرئے — که په مرګ دَ رقیب هم هسے شمشیرئے
مرګ خو بیخے چه پچپله راپسے دے — څه محتاج زما و مرګ وته دیره بیرئے
کبرو خیال خولا له ځانئے ستا عادت وه — اوکه لن زماله قصد په بل پیرئے
دا بے شماره عاقلان به شی کم عقل — ته چه دا رنګ په زړهٔ وکښه دلیرئے
شاخ بیونه به پچپله ځان خرګند کړه — څه به وایم چه ته هسے بلا درتیرئے
له حیرت دِ تعریف کولے نهٔ شم — که په څه رنګ دِ ستایم دَ چا په څیرئے
منچه ستاه لبو خوند و اخست محفوظ شوم — که سل ځله په ترخه ویل ګنډم بیرئے

دجهان ښکلی که واړه دَ رحمٰن شی
خدائے دِ نهٔ که چرے نهٔ له دله هیریږی

بو وصل تو ما را کجا هات هے — که وصل تو خیلی بڑی بات هے
بکوی تو ګفتم که مستن کنم — ولے که مرا این دراجات هے

خم زلف تو گوشه ابروان    دلم را عجایب مقامات هے
مکن پیش من وصف خورشید ماه    که از حسنت این کم علامات هے
همی دادي دشنام وګالی مرا    بنوشم همین از تو سوغات هے
نګاهت نه امروز خونم بریخت    که دایم ترا همچو عادات هے

زآغوش رحمٰن مرد بار قیب
که این سفله بد خوئی و بد ذات هے

دا ژوندی چه معلومیږی دا په مره دی    که څه دی هم هسے وایه چه څه نه دي
یاد باد په ځنګن خاورے دی دا ستورے    یاد اوره په ځینے دا ره اوچ وابنه دی
د خپل هم شپے اوورځے به په ژړه کړم    هسے دریږی چه سمندر کو یا اوبه دی
غافلان که وینے اوری بے ځنے څه کړی    د غے موب دے نه لمیده نه اوریده دی
چه د خدائے له معرفت خبر نه دی    هغه واره که بیدار دی که اوده دی

د رحمان د ژړه له حاله خدائے خبر دے
چه په ژړه کښ مے د یار له غمه دی!

چه پیښته شی آشنائي    ترمیان روزی جدائي
د طالب رته وفا شی    د مطلوب بے وفائي
بادشاهی کاندی ید له    دویدن په ګدائي
خانی پلوری په ادربو    میرزائي په میرزائي
نظر نه کاندي چپرے    په نوئي په بهائي
ورته کفر ښکاریږی    خود بینی اوو خودرائي
خودرائي په عاشقی کښ    له عاشق نه بنائي
معشوقی که بیرته دی    عاشقان خوئي ستائي
غوږ نے کو نر ستر کے ړندے دی    د خپل یار په خطائي
که نے کړړ دی سل علم    هم دینی هم دنیائي
همه واړه نه منی کا    چه پرے ورشی شیدائي
د مطلب ته نه رسیږی    په شیخی په ملائي

آواره ننګ و ناموس کا ‌‌‌‌ په سر واخلي رسوايي
تر ناموس ورته به شي ‌‌‌‌ بې ننګي بې نوايي
هره چاره په اخلاص وي ‌‌‌‌ نه په ردي وربيايي
تسلي په دا رو ستر کو؟ ‌‌‌‌ هر چه يار پرې فرمايي
نصيحت پرې اثر نه کا کره ‌‌‌‌ که څوک سل ځله وايي
فائده نه لري په عشق کښ ‌‌‌‌ د دانا و دانايي
مشکل کار دی عاشقي ‌‌‌‌ آسان چرې ده مبايي
دغه کار کولې نه شي ‌‌‌‌ هر کم فهم کجايي
هر بد بخت يي کله مومي ‌‌‌‌ د دلبر د همتايي
چه په کسب مونده نه شي ‌‌‌‌ دغه کار دی عطايي
چه د عشق په لومه کښېوزي ‌‌‌‌ نور ئې نه وي رهايي
بې د يار له مخ نه شي ‌‌‌‌ د عاشق د ېکشايي
د خپل يار په طلب ګرزي ‌‌‌‌ غاړي غرونه پېمايي
له عالم وي وشلي ‌‌‌‌ لکه صيد صحرايي
تل تر تل يي وطن وي ‌‌‌‌ ګوشه کنج و تنهايي
مدام کوري لوغرن وي ‌‌‌‌ د خپل آه په ګرمايي
هر زمان يي په اورېيي ‌‌‌‌ د خپل يار تمنايي
نه ئې ملک نه ئې مال وي ‌‌‌‌ نه ئې زهد پارسايي
په دا هسې ګرانو چا ردو؟ ‌‌‌‌ معشوقه يي ازمايي
په يوه ديدن ترې يومي ‌‌‌‌ د درست عمر کمايي
هم مر هسې رنګ وژني ‌‌‌‌ ياره ستا بې وفايي
چه په زړه کرم زهر م چوي ‌‌‌‌ دفه ستا خودنمايي
هم خودي لري بې قياسه ‌‌‌‌ هم د حسن زيبايي
ضرر نه لري بې نفع ‌‌‌‌ ستا د مينه سودايي
ستا سودا مالره سود دی ‌‌‌‌ حق به دايم خدايي

په هيڅ مخ کښ ليده نه شي — ستا د حُسن صفائي

نمر به څه له سيالي کړه — په دا بے سرو پائي

ادراک نه رسي د سرو — ستا د قد په رعنائي

مګه ستا چه قد بالا دي — نشته هسے بالائي

که د استا وصال ريا وي — زه ماهي يم دريائي

د مګس زندګي ده — په دوکان د حلوائي

زه طوطي شکر پرست يم — د استا شونډے ميتائي

د اګمان په رحمن مه کړه

چه بي تابه وپائي

هغه يار چه بنائسته دی تر آفتاب — مخ به کله راڅرګند کا له حجاب

بيلتانه به زره زهير کړم بے حساب — يو سبب وکړي مُسبِّبُ الاسباب

چه زما ملاقات وشي له احباب

ملاقات د بنائسته مے نصيب کړے — د بنائسته په ګلستان مے عندليب کړے

عندليب مے په ګلشن د خپل حبيب کړے — خدايه ما په دلبرانو کښ قريب کړے

وے مے ژغورے ددے اهل له عتاب

هغه يار چه زړه يې سينه په ديدار کړم — هميشه يې د ديدن تمه انتظار کړم

شپه و ورځ په سے زاري وهم کوکار کړم — که په دوی ورته تمام جهان روښيدار کړم

سترګے نه پورته کوي د ناز له خواب

بيلتانه يې پټ پڅم په زړه تاراج کړم — د ديدن تمے په هسے رنګ محتاج کړم

چه عمر تابعه د عشق نو په امراج کړم — هيڅ پاياب مونده نه شي څه علاج کړم

د آشنا د مينے غم سته ناپاياب

ته چه کس يے د جمله و بيکسانو — هم سازکار يې د جمله و خاکسارانو

الهي په بزرګي د بزرګانو — زه وصال په دعا غوارم د خوبانو

لا به کله دا دعا شي مستجاب

اسير کړے د د زلفو په طناب يم — تکبير کړے د د سترګو په قصاب يم

دکشتئ غُنډ مدام په اضطراب یم　　لکه زۀ چه ستا له غمَ په عذاب یم

خبر به شه هیڅ بنده له دے عذابَ

دریغ مه وړے په دُنیا کښے پید اشوے　　اوکه دی هم په دا هسے شان خومه وړے

لکه زۀ یم دَ هجران په لمبو سوے　　څو به ګرزم دَ هجران په اوراو لوے

چه سینه مې شوه په درست جهان کباب

هیڅ هسئ څه مې دا خراب خاطر ناښاد شه　　زیست روزګار مې همیشه آه و فریاد شه

عمارت مې دَ زړۀ هسه رنګ برباد شه　　چه حباب غُند بې بیخ بې بنیاد شه

د بنیادئ طمع به څه کړم له حبابَ

پټ پټ ګرزم دَ ناصح له نصیحت　　راتند کانډِ نصیحت په څو صورت

چه توبه کړم دَ خوبانو له قربت　　هیڅ خواب ئے په ما نۀ شی له غیرت

درمانده ورته ولاړ یم لا جوابَ

دا جواب څه دا سے نۀ شی چه په خوله شی　　دعشق راز هسے نۀ دے چه وایه شی

دا مشکل حکایتونه په ما نۀ شی　　دا دے بحر بے پایان حساب په څه شی

چه یئے زۀ وچاته وایم له حسابَ

ما مرندے د دے بحر پایان نۀ دے　　دغه راز و هر سړی ته عیان نۀ دے

هیچا کړے د دے چارے بیان نۀ دے　　دغه واړه عاشقی د ه رحمٰن نۀ دے

چه په خوله کښ دُر و لعل لری سیرابَ

ستا جفا د حد هورته ده صنمَ　　تل مې او ښکے مرج وهی دَ زړۀ له نم

څو به پټه دا قصه اوسی پنهم　　هسے ډوب په فکر تللی یم له غم

په پوهیږم چه په غره یم که په سمَ

که خبر وے له دے هسے رنګ خوارئ　　ما به نوم اخستے نۀ وه دَ یاریٔ

ستا دَ غم په دریاب ډوب یم ترمرئ　　بې تا نۀ لرم هیڅوک دَ دستګیرئ

مګر ته پخپله راشے را کړے همدم

مارے نور به آشنائی له هیچا نۀ کړم　　هم په دا رنګ مې نیت و یاری څښ کړم

دقسمت علاج په چاشی چه ئے زۀ کړم　　که په سل رنګه تلاش وته بیړ وکړم

خلاصي نهٔ موم له لوح له قلمه

خوبرويان که بيوفا دي خو هم ډېره دي ... عاشقان که وفادار دي خو هم ږېړه دي

ستا له غمه هر چه دي زما په زړهٔ دي ... اوس به حال وچا ته څه وايم چه ته دي

غرض دا دي چه زهٔ کرم يم ته نا کرمه

يو خودا چه په صورت ئې پري روبيه ... هم په خوئ خصلت فرښته خويه

هم په قد و قامت هر کوره لويه ... بيا به نه مومي څوک تا غنده دلجويه

که ئې غواړې په هژده هزار عالمه

ستا له غمه زهٔ په ځان کرم هسې چارې ... چه د ښنه ئې وبله نهٔ کا ګلعذارې

ته په څه سبب زما نه دل آزارې ... دا زما ګناه را ونښيه دلدارې

چه توبه کرم نصوحا غنډ محکمه

لاس ترغاړه د رقيب سره خندا کړې ... چه ما وويني له قصد راته شا کړې

خدائے دي هغه چارے چه په ما کړې ... ترابده ورځې پورے به جفا کړې

که به کله وچار ورنه له ستمه

تا چه هسې بې نيازئ د ځان تو بنه کړه ... په عاشق د خندا زمکه ستره کړه

بيا د ورځ په غريبانو باندې شپه کړه ... نور دا هسې د جفا خوبونه مه کړه

خلقه به د له جوره شي برهمه

ستا زماله مينې هر څوک خبردار دي ... دا خبرے کورا کور په هر ديار دي

چه فلانا فلانګي سره وستدار دي ... اوس په بيرته جار د واته وماته عار دي

چه رسوا شوم تر عرب وتر عجمه

هغه زړي چه په تا باندې مين وي ... په ډګرې به رسوا لکه کوهکن وي

هميشه انګشت نما په مرد و زن وي ... چه دا ښې پکښ نه دي دروغژن وي

که په هره ګړئ خوړے هزار قسمه

نښانه د عاشقانو اول دا ده ... چه مدام ئې سر يکاروي له فرياده

تل نا مه د بد نامئ وي پره زباده ... نه ديريږي له پېغوره له اهداده

بې ديار د جدائي له ماتمه

هرچه زړهٔ يې مبتلا شي په بتانو — زيست يې نه شي يو ساعت بې مهرويانو
که څوک ورکړي بادشاهي د بادشاهانو — په نسبت د هغو سويو سوختګانو
دا متاع ده د يوه خسنړي کم

که سليمان غوندې مسند يې په هوا وي — په سبب د عاشقۍ به خاک پا وي
همېشه به له فرياده په غوغا وي — چه د اهسې نشاني پکښې پيدا وي
تر وهاله پرې عاشق ده مسلم

عاشقي د هېڅوک نه کېږي آسانه — دا خبره ده له حده پورته ګرانه
وصال نه دے چا موندلے بې هجرانه — ته له ځان سره آټکل وکړه رحمانه
په دنيا کښې بنا دي چرې ده بې غم

# تمت بالخير

